

# توره بوره

دري میاشتنۍ

لسم کال لومړۍ ، پرله پسې اوه دیرشمه ، حمل، ثور، جوزا ۱۳۹۲



## داسلامي حاکمیت هیله او یو وړاندیز



## امریکا اډې او ایساف مفاهمتي مراکز غواړي !

## درآستانهای پیروزی...؟



## دجهادي فکر مجدد



## کرزی غواړي

## دتاریخ تکرار ، که د نورو تجربې پردې بلل !








خپلواکه ، اسلامي ، جهادی او ملي خپرونه

لسم کال لومړۍ ، پرله پسې اوه دیرشمه ، حمل ، ثور ، جوزا ۱۳۹۲

# لړلیک



مؤسس:

غازي اجمل

دامتیاز څښتن:

توره بوره فرهنګي اداره

مسؤل مدیر:

جمالدین ادیب

jamal.patan٤٥@yahoo.com

کتنپلاوی:

پوهندوی دیدار ،استاد جراح ،پوهنمل سعادت

کمپوز او ډیزاین:

ابو زبیر افغان

بیه:

یوه ګڼه ۱۵ افغانۍ او ۲۰ کلدارې په پاکستان کې

تیراژ : ۲۰۰۰

یادونه

❋په توره بوره کې خپاره مطالب دلیکوال نظر څرګندوي ، داادارې توافق ورسره شرط نه دی
❋ټولو هغو لیکوالو ته چې دپردیو تر اغیز لاندې نه وي راغلي ، اسلامي او ملي فکر ته ژمن وي ، بلنه ورکوو چې خپلې لیکنې په دري او پښتو ژبه ادارې ته راولیږي
❋ستاسې نیوکو او نیکو وړاندیزونو ته سترګې په لاریو

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله



# داسلامي حاکمیت هیله اویو وړاندېز

کله هم چې د اسلامي شریعت د نفاذ خبره په هغه وخت کې سر ونیسي چې په مقابل کې طاغوتي نظام په کلکه ولاړ وي او په مختلفو بهانو او چلونو د دې سپېڅلي و مقدس نظام د قیام مخه نیسي، یا هم د شریعت د نفاذ خبره داسې مهال رخ اخلي چې یو ځل همدا نظام د طواغیتو د دسیسو او د غلام طبعو د خیانت په نتیجه کې سقوط سره مخامخ شوی وي. نو باید او بیا هم باید یوه خبره په نظر کې ونیول شي، چې بې له جهاد او مسلحې مبارزې د اسلامي نظام د نفاذ او اعادې هیله نه شي تر سره کېدای!

د اسلامي نظام د قیام لپاره جهادي فکر تر هغه پورې کار کوي، چې د نظام خلک په تمامه معنی ځای ته ورسیږي او عملا د شریعت نفاذ شروع شي. له دې وروسته جهاد د اسلامي نظام د بهرنۍ پالیسۍ یو عنصر شي او د اړتیا پر مهال ترې کار اخیستل کیږي.

موږ هم دا دی لا د جهاد په داسې مراحلو کې یو چې په یوه اصطلاح د پاڼ په خوا ولاړ یو، دښمن مازې د یوه غفلت انتظار باسي، هغه وخت چې د غفلت څپه موووهي بیا به د پاڼ له ارتفاعاتو لاندې د مر ګ تر خولې رالوېږو (خدای مه که)، خو مخکې تر دې چې یا مو غفلت ووهي او یا مو د دښمن بیداري لار ونیسي، موږ ته په کار ده، چې خپل تصمیم ونیسو او د ویښ لاروي په څېر د سیاست ګرځني ووهو!

زموږ د جهاد دولسم کال روان دی، خو د هجرت لپاره مو داسې مرکز ځانته جوړ نه کړ، چې د مدینې د چاپېریال تنده پرې ماته شي، د جهاد قیادت مو له فکري او فزیکي پلوه په داسې مصئونیت کې ووینو چې د محمدي قیادت ممثلې کرشمې موږ رونه رڼا کړي، د جهاد د قیادت په لاس روزل شوي داسې ځوانان چې د علي رضي الله عنه، سعد رضي الله عنه، عمروبن العاص رضي الله عنه او خالد رضي الله عنه د ځوانۍ قند افروزه خاصیتونه ولري.

دمهاجرت د مؤاخات (وروروله) کره او ټینګ احساس څپې ووهي، علاماتي محدودیتونه مو د وروروله ارزښت پایمال نه کړي او د مسجد نبوي په څېر داسې مرکز بنسټ شي، چې بیا یې جلوې او انوار د مادي فیض په بڼه هم نړۍ مهار کړي، له همدې مرکزه داسې سیاستونه سرچینه واخلي چې د فارس او روم ډوله سلطنتونو دروازې وټکوي!

بالعکس د "ولاء او براء" هغه بېلګې ووينو چې لور پلار سره د ايمان پر سر او د اسلام د حاکميت پر سر د عاطفي لوړ منارونه ونړوي، لکه څرنګه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم بي بي أم حبيبة رضي الله عنها خپل پلار ابو سفيان د رسول الله صلى الله عليه وسلم د شړۍ له ناستې په دې دليل منع کړ، چې ته مشرکيې او دا د توحيد د ستر داعي د ناستې شړۍ ده. يا لکه خالد بن وليد او عکرمة بن أبي جهل چې له کلکې او صميمي يارانې وروسته د همدې اسلام د حقانيت او حاکميت پر سر د يو بل په مقابل کې وجنګېدل. يا لکه حضرت عمر رضي الله عنه چې ابو سفيان ته د اسلام پر سر وويل: والله چې بل هر څه قحط شي او يوازې هغه واړه سره مېږي راسره پاتې شي، هم به جګړه درسره کوم !

موږ که د هجرت په ديار کې نه د مسجد نبوي غوندې مرکز لرو، نه په کې د خپلو ځوانانو د سالمې روزنې زمينه لرو، نه په کې د وهمي او مشکوک چاپېريال له امله د اسلامي ورورولۍ احساس پر ځای کيږي، نه په کې د ولاء او براء اصل پر ځای کيږي، نو موږ د کوم ښه راتلونکي تمه لرو؟

موږ د خپل نظام لپاره په کوم ماحول کې خلک روزو؟ موږ په خپل هېواد کې ازادې سيمې لرو ولې هلته عملاً د نظام لپاره د کار تابيا نه نيسو؟

ولې خپله توجه هغو سيمو ته نه اړوو چې ازادې دي او بايد لا پسې ازادې شي؟ تر هغې چې په دار هجرت کې موږ په خپلو ځانونو اسلام نظام نافذ نه کړو، وبه نه شوا نېږو چې پر بل يې ومنو ! اصلا په اسلامي نظام کې دا تصور نه شته چې قائد دې وي، افراد دې وي، اجتماع او نظام دې نه وي !

زموږ د اسلامي نظام د قيام هيله به هله تر سره کيږي، چې مدني چاپېريال اعاده شي او د اوسني جهاد قيادت او افراد د پردي ماحول له تاثير او پراګندګۍ وژغورل شي، که نه نو دوهم کرت به هم سربښند نه او مېړا نه يوازې او ايله دومره وکړي چې: امريکا جنګ و نه ګاټه !



# امریکا اډې او ایساف مفاهمتي مراکز غواړي !



## پوهندوی دیدار

د افغانستان سیاسي اوضاع ډېره ګډوډه وډه او بې ثباته بریښي. امریکا اعلان کوي، چې له (۲۰۱٤) وروسته نه پاتې کیږو، ځینو اروپایي دولتونو خپل پوځیان لا د مخه وویستل، استرالیا او څو نورو هېوادونو وویل چې موږ به له دوه زره څوارلسم وروسته هم خپلو مرستو( ! ) ته ادامه ورکوو. همدا ډول امریکا د ډراماتیک تړون(ستراتیژیک ) په اړه دوړ کې نړۍ ته ښایي چې ګوندې د کرزي دولت د افغانستان د استقلال پر سر له امریکا سره چنې وهي !
د امریکا له خوا دا خبره ډېره په احتیاط او بطیئ ډول پر مخ ځي چې امریکا د ستراتیژیک تړون پر اساس نهه(۹) لویې پوځي اډې غواړي، خو لا هم خبره د کرزي ادارې تر توافق پورې معلقه ده. بل لوري ته راسموسن په ډېره ناړامه ژبه اعلان وکړ، چې ایساف په افغانستان کې د لویو مفاهمتي مراکزو د پرانیستلو پرېکړه کړې. د دې مفاهمتي مراکزو د پرېکړې په اړه نه کرزي څه وویل، نه یې کابینې غوږ وګراوه او نه هم د کرزي د پارلمان او سنا غړو خپلې ژبې ته څه حرکت ورکړ.
سوال دا دی، چې د ایساف مفاهمتي مراکز څه معنی؟او د امریکا نهه اډې څه مطلب؟
که څه هم امریکا او ناټو د اوسنۍ صلیبي جګړې له پیله په خپله هره خبره کې دیپلوماتیک خاصیت له پامه نه دی غورځولای، په دې معنی چې په پرېکړو او قضاوتونو کې یې د یرغل ژبه نه ده کارولې، خو بیا هم له فکري پلوه دا خبره په تمامه معنی ثابته ده، چې دا صلیبي یرغل دی او په نهایت کې یې اهداف هم په تمامه معنی صلیبي دي !
د نوې صلیبي جګړې طرز هم دا دی چې سیاسي او دیپلوماتیک اصول باید له نورو لوړې او التزاما مراعات شي، چې د صلیبي یرغل او صلیبي اهدافو شناخت په کې په اسانۍ و نه شي، خو موږ باید په دې خبره با ندې سره ښه او ژور پوه شو، چې پیل او پای دا یرغل صلیبي دی !
د امریکا اډې دا معنی چې د اوسنۍ صلیبي جګړې د امتداد او تسلسل لپاره باید د سي آی ای کارکوونکو ته مصئون ځایونه ورکړل شي. هغه اهداف چې اوسنۍ جګړه ترې څرګندیږي، په هر قیمت لاس ته راوړل شي. موږ د دې جګړې له پیله دا خبره په کراتو مراتو کړې چې صلیبي جګړې هیڅکله د ورو اهدافو لپاره نه کیږي او نه هم صلیبي یر غلونه نیمه کې پرېښوول کیږي، یلکې په هر قیمت او هره لار اهدافو ته ځان رسول کیږي !
ګویا ویلای شو، چې امریکا او ناټو د جګړې رخ بدلوي، خو خپل مسیر نه پرېږدي. نړۍ فکر نه کاوه چې افغانان او د نړۍ نور مسلمانان به د دې جګړې ماهیت ته متوجه شي، نه یې دا انګېرله چې دا جګړه به دومره اوږده شي، ځکه چې دوی د خپل

صلیبي یرغل لپاره نوې ژبه وکاروله ، خو دا چې افغانان یو پوه او ژور ملت دی ، د دې جګړې تل ته کوز شول او په لوی لاس یې امریکا او کفري نړۍ هغې کندې ته وغورځوله چې ترې په څنډه روانه وه.

کفري ځواک نه غوښتل له دومره کلک او اوږد اسلامي مقاومت سره مخامخ شي ، خو د جهادي فکر قیادت کله خپل فرصت له لاسه ورکاوه ! نړۍ له ډېرې مجبورۍ جګړه روانه وساتله او تر همدا اوسه یې دا هیله وه ، چې ګوندې له جګړییزو لارو دا موضوع پای ته ورسیږي ، خو نهیلي شول ، چې بالاخره خبره وتلو ، اډو او مفاهمتي مراکزو ته راغله.

موږ باید سره پوه او سو چې دا اډې او دا مفاهمتي مراکز ، د نوي صلیبي تکتیک د پیلولو لپاره قرار ګاوې جوړول دي. دوی نه غواړي په مخامخ جګړه کې ځان او مال دواړه له لاسه ورکړي. دوی به کوښښ کوي ، چې ملي پولیس ، ملي اردو او محلي پولیس په نیمه نیم تربیت میدان ته راوباسي او له همدې اډو او مفاهمتي مراکزو قومندې ورکړي.

دا به یوې خوا د افغانانو تر منځ د کورنۍ جګړې کلک او یقیني باعث شي او له بل پلوه به دا ټولې نادودې ظاهرا په دوی نه وراړول کیږي. موږ پوهیږو چې دا د جګړې بل رنګ دی. زموږ اسلامي ښوونې مازې د رنګ په بدلولو خپل اوامر نه بدلوي او نه فقهاء کرام تر هغې خپلو فتواوې په دې بدلوي چې څوک دې خپل ظاهر بدل کړي.

که خبره د ظاهر شي نو له اوله دا خبره دومره نه سختېده ، خو خبره د ژورتیا به ده ، موږ د موضوع عمق درک کړی ، د دې خبرې تر شا چې کومې وژونکې او نړوونکې موخې پرتې دي ، هغه موږ ته داسې عیان دي ، لکه نړیوال چې په خپله اصلي څېره کې زموږ مخې ته ولاړ وي. له جهادي لیدلورې تر هغې دا جګړه اوږدېدای شي ، چې تر کومې صلیبي قوت په خپل ډېر او ډېر تت رنګ کې هم پاتې شي.

که نړۍ دا غواړي چې افغانان او مسلمانان دې مازې په دې وغولیږي ، چې د یرغلګرو حضور دې په بل ډول وي ، نو دا دې له یاده وباسي. تر هغې به جهاد په غورځنګ وي ، چې تر کومې د دې جهاد هدف کاملا او په تمامه معنی پر ځای نه شي. هدف واضح دی ، د اسلامي امارت قیام د دې جهاد اصل ، لومړنی او اخرنی هدف دی او دا هدف تر هغې نه شي تر لاسه کېدای چې تر کومې په ډېر بې کاره او ډېر تت رنګ هم صلیبي یرغلګر او قوت په افغانستان کې موجود وي.

اډې او مفاهمتي مراکز د اسلامي امارت د مخنیوي لپاره د دښمن قوي مورچلونه دي ، دا مورچلونه منل د دې ولس له هغې غوښتنې سره سراسر ظلم دی ، چې له تېرو پينځو لسیزو راهیسې ورته سرونه شیندي. افغان ولس له پنځوسو کلونو راهیسې د اسلام د حاکمیت لپاره سر په تلي کې نیولای ، اوس که په هر ډول او هر رنګ د ولس د دې غوښتنې مخنیوی کیږي ، د اسلام د لارې فدایان به یې په خپلو غوښو او هډو نو له منځه وړي !




# درآستانهای پیروزی...؟

حسن عادل

اینک شاهد دوازدهمین سال اشغال کشور از یک سو و از جانب دگر شاهد رشادت‌ها، حماسه آفرینی‌ها، فتوحات و دستآوردهای بی نظیر ملت مجاهد و اشغال ستیز افغانستان بوده ایم. این حماسه‌ها، همانند تاریخ طلایی گذشته‌ای مبارزات آزادی خواهانه‌ای نیاکان ما ثبت تاریخ مبارزات آزادی‌خواهی، عدالت‌خواهی، استبدادستیزی، اشغال‌شکنی و دشمن‌ستیزی درج دفتر ملت‌های آزاده خواهد شد. مبارزه‌ای یک دهه‌ای پسین ملت ما، نشان داد که هنوز هم خون عطرآگین آزادی‌خواهی و اشغال‌ستیزی در رگ‌رگ فرزندان رشید این ملت در جنبش است. هنوزهم، در قرن بیست‌ویک، در قرن تکنولوژی، در قرن پیشرفت‌های خارق العاده، در عصری که هیچ‌کس بر پیروزی مبارزه‌ای یک ملت مصمم، متعهد، مسلمان و آزادی‌خواه باور نداشت؛ فرزندان حلالی افغانستان عزیز، فرزندان وطندوست افغانستان جاودان دلیرانه به سنگرهای آزادی و استقلال شتافتند و باری دیگر جهان را به این باور متقاعد ساختند که هنوز هم صدای ملکوتی الله اکبر و اراده‌ای پولادین این ملت بر آهن و تکنولوژی پیروز گشت. وقتی از پرده‌ای تلویزیون‌های که توسط اشغال‌گران جهت مسموم‌سازی افکار عامه تأسیس شدند، تماشا می‌کنم که فرزندان افغانستان بر فراز ساختمان‌های مجلل کابل برآمدند و تأسیسات نیروهای اشغال گر را هدف قرار می دهند، از ته دل بر جرأت، شهامت، شجاعت و سرسپردگی ایشان اعتراف می کنم و آفرین‌ها نثارشان می کنم!

آفرین بر شما ای فرزندان عزیز ملتم!

صد آفرین باد بر جرأت و شهامت شما که آبروی ملت ما را به جا آوردید!

شما که جان های شیرین تان را نثار آزادی نمودید!

شما که در شهر کابل اشغال گران را به لرزه درآوردید!

آفرین بر شما!

مادری بنشیند و فرزندانی مانند شماها بزاید...!

شما جاودانید...! شما ابدی هستید...! شما زنده اید...!

شما در دل ملت ما جا دارید!

ملت با شماست! خدا با شماست! خدا می فرماید که شما زنده اید!

شما زنده خواهید ماند!

زنده باد شما! راه شما! آرمان شما!

الفاظ من عاجز اند تا از قهرمانی های تان به طور شاید و بایدش اظهار سپاس گذاری و قدردانی کند!

مرا ببخشید با این قلم شکسته ام! شما بهترین های کره‌ای خاکی هستید!

کم ما و کرم شما...!

این فقط یک اظهار قدردانی بود به یاد قهرمانی های شهدای عزیز وطنم. اما این داستان به همین جا به پایان نمی رسد. تا ایندم شاید نوشتارم با عنوان همخوانی نداشته باشد. این تلاش ناچیزی بود در جهت تقدیر عملکردهایی فرزندان میهنم. اما نباید فرآموش کرد که انقلاب را نمی توان تنها از راه مبارزه ای مسلحانه به کامیابی رهبری کرد. در نخستین تعریف انقلاب می خوانیم که یک انقلاب واقعی نخست باید مردمی باشد و از متن جامعه سر بالا کند. و در قدم دوم باید که باعث تغییرات فراگیر و همه جانبه در جامعه شود. باید اساس جامعه را تغییر بخشد و در بخش های مختلف تغییرات چشم گیری را به بار آورد. خب، وقتی شیرمردان کشور ما مصروف پیکار هستند و دشمن تقریبا به شکست مواجه شده است، در این مقطع حساس تاریخی در این وضعیتی که سیر تاریخ تغییر می خورد، چه باید کرد؟

مسئولین مجاهدین چه راه کارهای باید روی دست داشته باشند؟ دربخش سیاسی، اقتصادی، امنیتی.. چون آینده ای این کشور به اینها ارتباط دارد، در آن صورت کشور آزاد خواهد بود، درآن صورت همین‌هایی که امروز مسئولیت دارد و این وجیبه ای ملی و اسلامی شان است که در برابر اشغال قیام و جهاد نمایند، بمب بگذارند... فردا بار سنگین پیشرفت، ترقی و آبادانی این کشور به دوش ایشان خواهد بود.

چه باید کرد؟

نیروهای اشغال گر بیرونی خبر داده اند که تا پایان سال ۲۰۱٤م افغانستان را ترک خواهند گفت. امریکایی ها هنوز تصمیم قاطع اتخاذ ننموده اند، ولی هنوز مقامات دیپلوماتیک ایالات متحده مصروف این فیصله اند تا به طور کامل از افغانستان بیرون شوند و یا پایگاه هایی داشته باشند. این سوالیست که امریکایی ها همین حالا با آن مواجه اند و تا دم نگارش این سطور به فیصله ای نهایی نرسیده اند. به هر صورت، این به امریکایی ها مربوط است که چه می کنند، ولی با دوام راه جهاد و مبارزه، مقامات امارت اسلامی نیز یک سلسله مسئولیت هایی دارند که باید دربرابر خواست هایی وضعیت فعلی پاسخگو باشند.

دفتر قطر، نتیجهٔ یک دهه مقاومت !

امریکایی ها هرگز حاضر به پذیرش نیروهای امارت اسلامی افغانستان به حیث طرف مقابل در افغانستان نبودند، ولی این تغییر در دسمبر ۲۰۱۱م زمانی در سیاست ایالات متحده رونما گردید که معاون رئیس جمهور اوباما در یک گفت و گویی با مجله‌ای تایم گفت که "طالبان دیگر دشمنان ما نیستند و این خلی مهم است". در حقیقت هدف جوبایدن و سیاست گذاران سیاست خارجی ایالات متحده این بود که با طالبان روی میز مذاکره بنشینند و گفت و گو نمایند. به تاریخ ۳جنوری سال ۲۰۱۲م سخنگویان امارت اسلامی اعلان نمودند که دیپلومات های ایشان به کشور قطر جهت مذاکرات با امریکایی ها سفر نموده اند و روی مسایل ذی علاقه طرفین بحث وگفت وگو خواهند کرد. این تغییر در پالیسی طالبان باعث شد که برخی از جوانان مخلص جبهات از این کار امارت ناراض شوند. یکی از رمزهای اداره و مدیریت احترام به تخصص ها و یا تقسیم امور است. ما در حالی که به مقاومت ها و رشادت های نیروهای مجاهد می بالیم از این ستایش می کنیم، می خواهیم خاطر نشان کنیم که دیپلوماسی و مذاکرات کار کمیسیون سیاسی است که مورد اعتماد همه ای مجاهدین قراردارد.

دفتر قطر از هر لحاظ برای نیروی مقاومت فوایدی دارد. با استفاده از این دفتر دیپلومات هایی امارت توانستند که به کشورهای چاپان، فرانسه و اینکه به جمهوری اسلامی ایران سفرهای داشته باشند. این سفرها بدون شک از لحاظ روابط بین الملل دارای ارزش ویژه ای اند. از مخالفت رژیم دست پاچه ای حامد کرزی معلوم است که تاثیرات سفرهای اخیر مقامات امارت به ایران تا چه حد تأثیر گذار بود. این سفر توانست ابهاماتی را که در روابط افغانستان (امارت) و ایران وجود داشت، بزداید. این سفر بدون شک که گمان های میان تهی را از بین خواهد برد. دنیای سیاست، دنیای منافع است، باید این قاعده را مقامات امارت در تحکیم روابط با کشورهای جهان مد نظر بگیرند.

چه باید کرد؟

با اعلان های خروج کشورهای که درافغانستان نیرو دارند، مسئولیت های سنگین بر شانه های نیروهای مقاومت افزوده می شود. ایشان نباید از آینده بی تفاوت باشند. مسئولیت های آینده‌ای شما به مراتب بیشتر از مسئولیت های فعلی تان است.

چند نکته خدمت مقامات بلندپایه ای کمیسیون سیاسی امارت اسلامی تقدیم می شود:

۱. ایجاد دفتر قطر از لحاظ دیپلوماتیک یک دستاوردی خیلی با ارزش است که باید از موقعیت شناسی کمیسیون سیاسی در این زمینه تقدیر شود. حال باید از این دفتر به دست آمده استفاده ای اعظمی صورت بگیرد. در جهت تأمین روابط با کشورهای همسایه، کشورهای رو به رشد از لحاظ اقتصادی و سیاسی یا کشورهای که بر آینده ای افغانستان تأثیر گذارند مانند چین و هند. همچنان با کشورهای اروپایی در مورد مسایل ذیعلاقه باید بحث و گفت و گو شود. هرچه روابط بیشتر باشد، به همان اندازه با ارزشتر می شوند. دفتر قطر خانه ای امنی خوبی است برای دیپلومات های امارت امارت اسلامی تا ازطریق سفارت خانه های کشورها در دوحه با این کشورها روابط بر قرار نماید. در این روابط حرف همه این است که دیپلومات های امارت اسلامی باید بتوانند موقف طالبان را در مورد قضایای دنیا و افغانستان برایشان روشن بسازند. غرب در طول یک دهه تبلیغات کرده است که گویا طالبان برای جهان خطر اند، در حالیکه چنین نیست. طالبان اهداف ملی افغانی دارند که ازاین ناحیه برای هیچکس خطری متوجه نخواهد شد. این مسأله مستلزم

بحث و گفتمان های طویل و عریضی است تا اعتماد این کشورها جلب شود.

۲. طوریکه که جناب امیرالؤمنین در پیام عیدی اش بیان داشته بودند که معضله ای افغانستان دو بعد دارد؛ بعد خارجی و داخلی. این تقسیم بندی کاملا بجاست، حالا باید دراین قسمت عمل کارشود. دفترقطر می توانداحد بعد خارجی معضله را تا حدی زیادی حل نماید ولی بعد داخلی معضله هنوز هم با ابهامات مواجه است. مقامات سیاسی امارت اسلامی باید در این زمینه جدی عمل نمایند. تأمین روابط خارجی نیازمند دفتر قطر است، اما در بعد داخلی باید دیپلومات ها و مقامات سیاسی امارت ازهمین حالا از چاینل های مختلف روابط تأمین نمایند، وضاحت هایی داشته باشند تا در آینده مشکل ایجاد نشود. این گفت وگوها و نشست ها می شود به سادگی تأمین شود. چون در داخل و خارج نماینده های امارت می توانند با جهت های تأثیر گذار آینده افغانستان گفت و گو نمایند. این گفت وگوها می توانند موقف امارت اسلامی را درارتباط به آینده ای افغانستان تا حدی زیادی روشن سازد.

۳. نظام آینده: ساختار سیاسی آینده ای افغانستان نیز از جمله ابهامات است که هنوز هم وجود دارد. کمیسیون سیاسی امارت اسلامی باید دراین مورد نیزبه ملت افغانستان وضاحت هایی داشته باشد. هنوز هم این معلوم نیست که امارت اسلامی خواهان چگونه ساختار سیاسی است. درست که امارت اسلامی و مجاهدین خواهان نظام اسلامی اند، ولی فقط با یادآوری اسلامی نمی توان این مسأله را روشن ساخت. نظام امارت اسلامی که قبلا بر افغانستان حاکمیت داشت، آن نظام نهایی نبود، بلکه به گفته ای مقامات آن زمان آن نظام فقط ازروی یک نیاز به طور دوره ای انتقالی به میان آمده بود که در صورت فتح کامل افغانستان نظام به آن گونه باقی نمی ماند. فلهذا کمیسیون سیاسی امارت اسلامی باید این پیچیدگی را تا حد لازم وضاح و هویدا سازد.

این سه خواهش عمومی بود که متوجه کمیسیون سیاسی امارت اسلامی افغانستان می شود. به امید این که امارت اسلامی به شمول میدان پیکار در تمامی بخش ها دارای کامیابی هایی باشد.

## رباعی

چې دحق په سر ختلي څوك په دار دي
خپل هدف ته رسيدلي دي سر شار دي

چې دخداي په لار کې وينه نذرانه کړي
ددې کلي ټول افراد دې ته تيار دي

دخپل دين وطن غليم له ورايه څاري
زموږ هر ماشوم بوډا او ځوان هوښيار دي

ستا په مرګ پسې ټوپك پر اوږه ګرځي
له اوږدو مودو عادت پر دغه ښکار دي

سره اورونه به دې بيا له تنه تاو کړي
تش يوې دننګ ټپې ته انتظار دي

هغوئ هم په ژوند ولاګه رانه ښاد شي
چې دچا له لاسه زموږ زړونه ازار دي

غليمان مې له جسد څخه وېرېږي
زما مړه هډوکي هم لکه انګار دي

دډالرو زور "زړګيه "دومره ډېر شوه
چې خپل خلك مو تر مخ کتار کتار دي

# دتاريخ تكرار، كه د نورو تجربې پردى بلل !



د عبدالله ګل ريان په قلم
د حقوق بشر اداري پخواني رئيس

افغانستان د غرونو اورغونو هېواد، په تاريخ كې د متجاوزينو لپاره يا موخه يالار اومعبر پېژندل شوى دى. دا چې وراندې څه تېر شوي، څوك وربا ندې راغلي، تېر شوي يا په كې پاته شوي دي، حال يې څرګند نه دى.

اريايان په يوه روايت د اورال او په بل روايت د سند له پراخې سينې راغلي دي. اروپا، ايران او هند ته له همدې ځايه تيت شوي دي.

يونانيان راغلي، څه يې تللي، خو ډېر يې دلته پاته شوي دي، په دې ټولنه كې جذب شوي دي، چې نوم يې لا ورته پاته نه دى. عرب مسلمانان راغلي، دين يې رارسولاى اوبيا تللي ياهم پاته شوي دي. چنګېزيان هم راغلل، وهل وژل يې وكړل، سيمه يې ونيوه او پسې تېر شول.

تيموريانو ته هم داسيمه د حكومت ځمكه وه، چې د هرات تيموريان واكمن وو، خو د بلې تيموري كورنى، بابر ګوركاني په دې لار تېر شوى، په هند كې يې ګوركاني حكومت جوړكړى دى.

په راوروسته كې افغانستان د روسي او انګريزى امپراطوريو تر منځ، د حايل په توګه، خود نيمه مستعمرې په څېر پاته شوى دى، تر هغه چې انګرېزان درې ځله راغلل او بيا روسانو بريد وكړ، افغانستان يې اشغال كړ، خو په ماتې لاړل.

د زمانې باغي ځواك امريكا چې د روسانو په ماتې بې سياله پاتې شو، له خپلو لسګونو هم موخو او همفكرو سره په تېرې راغلل. دا ده جنګېږي، وژل كيږي او وژل كوي، خو نږدې ده، چې پوزه يې سپېره شي، ووځي او هغه د عبرت درس چې نورو په افغانستان كې ليدلاى دى، دوى هم ووينې.

خو پوښتنه داده، چې ولې افغانستان د نړى‌تر هر بل هېواد ډېر د پاملر نې وړدى، ډېرو وربا ندې تېرى كړى دى. ډېر په كې مات شوي دي، ان تر دې چې اوس خود امپراطوريو د هديرې په نوم مشهورشو...

د دې اصل لامل دادى، چې دا خاوره د نړى‌د تمدنونو، دينونو او كاروانونو د تقاطع څلورلارى دى. كه له چين څخه اروپاته د وريښمو لاره وه، كه د لويديزې او ختيزې اسيا تجارتي لارې وې، ټولې له افغانستا نه تېرېدلې. كه سكندراو چنګيز په هند تېرى كاوه، كه اسلام ماوراء النهر يا هند ته خپرېده، دايې لاروه. كه محمود سومنات ماتاوه، كه احمد شاه دراني له مرهټو څخه مسلمانو ته نجات وركاوه، د حركت پيل يې له همدې ځايه و.

په راوروسته كې چې انګريزان د هند په خاوره مسلط شول، د روسانو د مخنيوي لپاره چې هندته كښته نه شي، تودواوبو ته چې د كال په هر فصل كې د كښتې اخستلو وړدي، و نه رسيږي، افغانستان يې سنګر وپېژاند، غوښتل يې همدلته يې تم كړي.

روسانو همدې اوبو ته د رسېدلو په تمه، په افغانستان كې لګښتونه وكړل، تنظيمونه يې جوړكړل، حكومتي چوكۍ يې واخستلې، كودتاوې يې وكړې وژنې يې وكړې او...

اوس دا ده امريكايان د ايران د مخنيوي، د پاكستان د اتومي وسلو د تخريب او په عربي نړى‌د تسلط لپاره، همدلته مېشت دي، چې څه يې له لاسه كيږي هغه كوي.

په هر حال ، دا د تاریخ مرحلې دي ، چې هسې مو رایادې کړې ، خو نور ځایونه په بریدونو او جنګونو کې طرفونه دوه وي ، متجاوز او مقابل ، اما له بده مرغه په افغانستان کې تل لوري درې وي : متجاوزین ، لاس پوڅي یې اومقابل یې.
د افغانستان د بدمرغی بله بېلګه دا ده ، چې تل حکومتونه د متجاوز په مرسته کې پاته شوي دي. د انګرېزانو په ملګرتیا کې له سدوزي شاه شجاع را نیولې ، بیا د محمدزیو تر سردارانو ، ټول واکمنان د انګرېز په حمایه کې پاته شول.
د ظاهر- داود دورې د روس په حمایه او د روسانو تر سیوري لاندې تېرې شوې. تره کی ، امین ، ببرک او نجیب خو د روسانو په مشوره او مرسته ، مستقیمه حمایه او د لکونو عسکرو په بدرګه ژوندي وو.
اوسنی اداره ، د امریکایانو یوه ایالتي اداره ده ، چې انتخاب او انتصاب یې هر څه یا د خلیلزاد په قلم وو ، یا د امریکایي سفیر او یا هم د ناټو د قوماندانانو...

که د نورو په وخت کې د ارګ خرڅ یا انګرېز یا روس ورکاوه ، خو اوس یې په بې قانونه توګه ، له (۴۳) ناټویي هېوادونو سره ، سره د ایراني تومنونو کمی هم نه شته ، چې مطبوعاتي شهرت ته رسېدلې خبره ده.
که خبره رالنده کړو. هر څوک ، هېواد او متجاوز افغانستان ته د افغانانو په مرسته په خورا اسانی راغلي دي. د انګریزانو تر مخه شاه شجاع راروان و ، خلکو تر یوه وخته د احمدشاه بابا په احترام څه موده ورسره ګذاره وکړه ، خو چې خبره بې عزتی ته ورسېده له ترې بېزاره شول.
یعقوب خان له انګریزانو سره د ګندمک معاهده ، چې د افغانستان د وېش او د انګرېزانو د حضور په معنی وه ، لاسلیک کړه. عبدالرحمن هغه تائید کړه او د ډیورند د کرښې له امله یې یو قوم په دوو برخو ووېشه.
د داود کودتا ، د روسانو په مشوره او په روسیه کې د روزل شوو ورو ضابطانو په مرسته ترسره شوه. د خلق او پرچم د کودتا خو هر څه روسي وو ، د ببرک راتلل خو د روسانو د ټانکونو په کتار کې وو او....
د امریکایانو د راتلو لپاره خو لومړی له (۱۵) زره څخه تر (۵۰) زرو ډالرو په بیه داسلامي امارت په مقابل کې د مقاومت قوماندانان واخستل شول او بیا د کرزي او عبدالحق په څېر کسان په هلیکاپترو کې راورسول شول ، ورپسې په (B۵۲) الوتکو د افغانستان حاکمیت او نړیوال قوانین نقض شول....
حکومت یې و نیو درایو په درغلی کې یې چې د امریکایي کوډاکیانو تر منځ د امریکا د نماینده خلیلزاد په ورانديځ وشوه ، کرزی را سرته شو. بیا منصوب شو او بیا تر دا اوسه پورې...
که سرې تاریخ ته وګوري ، په ټولو هغو کسانو کې چې د تجاوز اسباب یې برابر کړل ، د بهرنیانو په واسطه یې د ټیټو سترګو حکومت وکړ ، هغه تاریخي نوم بدی شخص شاه شجاع په نسبي لحاظ بد نه و. له تره کي تر کرزي ټول بې چون وچرا غلامان وو ، خو شاه شجاع چې کله وپوهېد ، چې انګرېزان دده حمایه نه غواړي ، بلکې د افغانستان تسخیر یې موخه ده ، د ده مرسته نه کوي ، بلکې همدی استعمالوي. په پټه یې د هغوی په مقابل کې ، د جهاد اعلان وکړ ، له مجاهدینو سره یې مرسته اعلان کړه او په وروستیو کې خود جهاد میدان ته راووت. مرګ یې هم د مجاهدینو له لوري نه ، بلکې د شخصي دښمنی په پایله کې ووژل شو ، خو هغه اوس د کوډاکیتوب په نړۍ کې متل ګرځېدلای ، د نورو حال تاسو ترې قیاس کړئ ، چې تر هغه یې د خپلو متجاوزو بادارانو په وړاندې کوم حرکت نه کاوه ، تر څو به یا هغوی بې ځایه کړل یا به له متجاوزینو سره یوځای ختم شول...
د کرزي خاتمه مستوره ده ، چې په دومره پراخه ځمکه کې به قبر ومومي او که نه؟ یا لکه تره کی په بالښت به ووژل شي او قبر به یې ورک شي. یا به لکه امین لومړی مسموم او بیا بې قبره ورک شي او که د نجیب په څېر به راځوړند شي...

دا خو په تاریخ کې د دوو لورو خبره وه متجاوزین او د هغوی ګوډاګیان. دریم لوری هغه کسان دي، چې د هر تیري مقابله یې کړې ده، هر وخت د مجاهدینو نوم وربا ندې ولاړ شوی دی، په هره مرحله کې د هغوی ځا نګړتیاوې دا دي:
په ډګر کې ګټل، په خونه کې بایلل، په توره ګټل، په ژبه بایلل، له نورو ګټل او تر خپل منځ نه لوړول....
دا چې دا مضمون دی، رساله نه ده، غوره ګڼم تر خو په دې موضوع د اشارې په توګه تم او ژر تر ژره تېر سم.
له انګرېزانو سره په خرپ جګړه روا نه وه، نږدې وه چې د هند د خاوري څه برخه لا مجاهدین ونیسي، خو د دوست محمدخان د نصوارو د ډبلي په نښه رارسېدلو، د جګړې ډګر سوړ شو او دوست محمدخان راغی، د انګلیس تر حمایه لا ندې واکته ورسېد.
بل ځل انګرېزان له سختې ماتې سره مخامخ شول، چې عبدالرحمن خان له هغوی سره په سازش کې رامخته شو. دا ځکه چې مجاهدین یوه خوله نه وو، عبدالرحمن هم هغوی یا ووژل یا یې وشړل او یا یې په تورو ځاګا نو کې واچول تر څو مړه شول..
له روسا نو سره رښتیا هم چې مجاهدین په مېړانه وجنګېدل، ښه تلفات یې ورکړل او تلفات یې ولیدل، خو د تنظیمونو په ګڼه ګونه کې، دا ځواکورسره پاته نه شو، چې په جینوا (ژېنو) کې د خپلې موخې، لاسته راوړنې او طرف استازیتوب وکړي، هر څه یې وبایلل...
د کمونستي نظام د وروستنی مهرې د تېښتې پر مهال، ځینومجاهدینو د خپلې تربګنی او نه لورېینې له امله، خپل مقدرات د بل په لاس او واک معلوم کړل.
د ریاست او صدارت د چوکیو په توپیر یې یقینا د جهاد نمایندګي په فساد وکړه، کابل یې وران کړ او...له خلکو یې د ثور د اوومې او اتمې توپیر ورک کړ...
نن سبا بیا حالات هغسې ښکاري، امریکا او (۴۳) ناټویي اندیوالان یې چې د صلیب، یهود او هنود تر افکارو لا ندې، د دیني دښمنی په احساس او د افغا نستان د اشغال په تمه، له مجهزو وسایلو سره راغلي وو، په افغا نستان با ندې برید یې د نورو هېوادو نو د تسخیر دروازه ګڼله، رښتیا هم مجاهدینو ورته سبق ورکړ. په توبو یې راوستل، خو توطیې یې پیل کړې، د مجاهدینو په صفونو کې یې د تفرق لپاره تبلیغات پیل کړل، مصارف یې وکړل، اشخاص یې وپېرسول.
داسې وخت را نږدې دی، چې همدا مجاهدین به ناست وي، د خپل تفرق له امله به یوهم د دې جوګه نه وي، چې د خپلې تورې ګټه په مېز په خبر و او ژبه خپله کړي...
رښتیا هم د انسان بدبختي دا ده، چې د نورو ا نسا نا نو تجربه خپله نه ګڼي، بلکې هر څه په خپله تجربه کوي، اوسني مجاهدین تر هغو چې د روسا نو په وړا ندې وجنګېدل، نه غښتلي دي او نه هغومره سیاسي تجربه لري، خوهغوی له ډېرو قربا نیو سره سره داسې تش لاس پاته شول، چې ډېری یې نن غلام صفته ژوند لري او یا هسې ارمان کوي ناست دي. د هغوی د کمزوري کېدلو لامل د هغوی بې اتفاقي وه او د بې اتفاقی لاملونه یې دا وو:
۱- دښمن ورته دسیسې جوړولې.
۲- د هغوی تر منځ، د واټن د پیدا کولو په موخه یې لګښتونه کول.
۳- استخباراتي شبکو بد تبلیغات کول، ان د یوه او بل په ضد یې وسله وال ګروپونه د مقابل جا نب له شعار او نوم سره جوړول.
۴- مجاهدینو سیاسي اړتیا نه محسوسوله چې د نورو تعاون ته اړتیا لري، بلکې هر یوه په خپل ځان کې دومره ځواک لیده، چې افغا نستان غو ندې هېواد اداره کړي.
۵- لویه ستونزه دا وه، چې له ستر نوم سره یې واړه هدفونه درلودل. هغوی مجاهدین وو، جهاد ته جوړ وو، خو د حکومت جوړولو تصور ورسره نه و. که و، له محدودو کسا نو سره و او...
که ننني مجاهدین د هغوی تجربې خپلې و نه ګڼي، هر څه له پیله تجربه کوي، پایله یې هم هغه ده، بلکې تر هغه لا زیاته بده ځکه ده، چې مجاهدینو د روسا نو په دښمنی کې نړیواله مرسته خپله کړې وه، خو ننني مجاهدین په همدې فقر هم اخته دي او د دښمن په صف کې یې ډېر هېوادو نه سره هم غړي دي.
د هغه وخت په مجاهدینو کې ځینې داسې کسان وو، چې د سیاسي کارو نوسوابق ورسره وو. چا د وکالت دوره تېره کړې وه، چا پخوا حکومتي د ندې درلودې او چا تنظیمي کارونه تجربه کړي ووا و چا دا حوصله درلوده، چې د سیاست د ډګر کسان جهادي صفو نو ته مایل کړي مثلاً، مرحوم مولوي محمد نبي وکیل وا وبا وجاهته د نظر

مرحوم خالص مطبوعاتي شخص وو، صبغت الله مجددي خو د تعليم له دورې لاسياسي شخصيت و. د سيد احمدګيلاني خو د ژوند سياسي اړخ تر نورو اړخونو قوي و. رباني، سياف او حکمتيار د تنظيمونو سابقه درلوده، شهيدمنصور د تنظيم استازيتوب په غاړه درلود او....
له دې سره سره داسې بې برخې پاته شول چې د جهاد مقاصد تر لاسه نه شول. که ننني مجاهدين د هغه مهال پېښې تجزيه او تحليل نه کړي، نو بيا خو حتمي خبره ده، چې تاريخ تکرارېږي او په دوی به هم تکرار شي.
دامو باور دی، چې هر څه مقدر دي اما انسان هم مکلف دی. الله تعالی د کوم قوم حال تر هغه نه بدلوي، تر څو يې قوم د تغير حرکت و نه کړي { إِنَّ اللَّهَ لاَ يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُواْ مَا بِأَنْفُسِهِمْ... }.
د دنيا هر څه اسباب غواړي، د اسبابو دنيا ده. په جنګ او جګړه کې هم بری او ناکامي آني او بې سببه نه وي. مقدمات لري، دلايل او اسباب غواړي. يوازې په جګړه هم جګړه نه ګټل کيږي. جګړه شا ته د هغوا رما نونو پالل غواړي، د کومو لپاره چې جګړه کيږي.
په هر حال، زما عرض دادی چې که نورتاريخ راڅخه لرې دی. د روسا نو زور، تېری او ماتې خو تر سترګو لاندې پېښې دي.
روسانو او نورو دښمنانو مجاهدين د نفاق په بيمارۍ وځپل، ملېشې يې جوړې کړې، چې وروسته د تنظيمي جګړو او د مجاهدينو د نوم بدۍ عوامل هغوی شوي. دوستمي او ګلم جم ملېيشې خو هغه څه دي چې تاريخ يې هېرولای نه شي.
امريکايان هم وځي، خو د هر متجاوز په څېر تر شا خير نه پرېږدي، هغوی چې د خاورو او خښتو کوډلې خپلو دوستانو ته نه پرېږدي، ورانوي يې، ايا هغه افغانستان به جوړ پرېږدي چې ټول سياسي او جنګي وجاهت يې په کې بايللی دی؟ نه، هيڅکله نه.
که روسانو ملېشې او مينونه پرېښودل، دوی به پرسولي اشخاص پرېږدي، د سمت او ژبې د نفاق اور چې را ته بل دی، هغه به نور هم تازه کړي. له اوسنيو تبليغاتو خو يې ښکاري، چې د افغانستان او پاکستان لپاره به د کشمير په څېر، د ډېورند فتنه را ژوندۍ کړي، ځکه امريکا او انډيوالان يې نه پاکستان زغملای شوای، چې په اسلامي هېوادونو کې يوازينی اتومي ځواک دی او نه افغانستان زغملای شي، چې هغوی په کې له ماتې سره مخامخ شوي او په شرمونو وشرمېدل.
کاشکې هوښيار اوسو، مشترکات وپېژنو، له اشخاصو، تنظيمونو، قومونو، سمتونو او ګاونډيو هېوادونو سره په هغه څه کې د تعاون روحيه خپله کړو، چې سره مشترک دي. داسې نه چې د شخصي، قومي يا ګوندي ګټو د تر لاسه کولو په مقصد ديني، ملي او سيمه ايزې ګټې قربان کړو. که هېواد خوندي وي، قومونه، ژبې، ګوندونه او اشخاص به هر څه خوندي وي، خو که هېواد په مصيبت اخته وي، د دين، سر او مال واک به مو پردی وي.





# د جهادي فکر مجدد

## د اسامه بن لادن د شهادت د دوهم تلین په مناسبت

..............................................

اکرام الدين کامل

## اسامه څوک و؟

اسامه بن لادن (دمارچ ۱۰مه ۱۹۵۷ز ) د میلیونر محمد بن عوض بن لادن کور کې نړۍ ته سترګې وغړولې. پلار يې له اصله د يمن و، په ۱۹۳۰ز کال کې يې سعودي ته هجرت وکړ او د جدې ښار په بندرګاه کې يې کار پيل کړ، چې له همدې ځايه يې د سعودي له حاکمې کورنۍ سره اړيکې پيدا کړې. د ابن لادن اړيکې له امير فيصل سره هغه وخت نورې هم کلکې او ټينګې شوې؛ کله چې د فيصل بن عبدالعزيز او د ورور سعود تر منځ اختلافات پيدا شول، ابن لادن د دوی تر منځ روغه جوړه کې ډيرې هلې ځلې وکړې، خو بريالی نه شو. د فيصل ورور سعود بن عبدالعزيز چې د دولت خزانه يې په لاس کې وه، تشه پرېښوده او په خپله مخه لاړ، سعودي دولت خورا له ستونزو سره مخ شو، هماغه و چې محمد بن لادن د سعودي دولت د رسمي مامورينو (٦) مياشتې تنخوا ورکړه، فيصل بن عبدالعزيزد محمد بن لادن ددې نېکۍ په بدل کې د ټول سعودي د ودانيو د جوړونې قراردادونه ده سره وکړل.
په ۱۹٦۹ز کال د شيخ اسامه پلار، محمد بن لادن د مسجد اقصی ودانولو ته ملا وتړله، مسجد اقصی په جګړو کې سوځېدلی و، همدارنګه د حرمينو شريفينو د بيا ودانۍ کار هم دده په غاړه و، د بن لادن کورنۍ ته د درې حرمونه د بيا جوړونې وياړ هم ورپه برخه دی.
شيخ اسامه لا کوچنی و، چې پلار يې د الوتکې په يوه پېښه کې وفات شو، د پلار ځای يې مشر زوی سالم بن لادن ونيو، سالم هم په ټکساس کې د الوتکې د لويدو له امله مړ شو، مشري شيخ اسامه ته پاتې شوه، ويل کيږي چې د ورور د وفات څخه وروسته شيخ اسامه درې سوه ميليونه ډالرو په اندازه سرمايه درلوده.
زده کړه:
شيخ اسامه ابتدايه، ثانوي او لوړې زده کړې په جده ښار کې ترسره کړې. شيخ اسامه په لوړو زده کړو کې د لسانس کولو لپاره د اقتصاد پوهنځي خوښ کړ، دلته ځينې خلك وايي چې شيخ اسامه لسانس په سول انجنرۍ کې کړی، خو له اقتصاد پوهنځي څخه يې د لسانس برۍ ليك اخيستل موثق دي.
د تحصيل په دوره کې د اسلامي امت دوه بارزو شخصياتو محمد قطب او شهيد عبدالله عزام سره د هغوی د کتابونو له لارې همفکره شو، شيخ اسامه د کتابونو له مطالعې څخه وروسته ددوی له مفکورې او نظريې څخه خورا متأثره شو.
د شيخ اسامه استادان دده په اړه وايي چې نوموړی خورا غلی، نرم، آرام او شرمناکه هلك و، خپل کار يې په خپل وخت کاوه، له نورو هلکانو سره يې خورا توپير درلود، شيخ ډېر ادبناك او مهذب و، په خپل ځان يې اعتماد درلوده، په زوره يې نه خندل، همېشه يې تبسم کاوه.

## جهاد او قرباني:

نړۍ ته مخه کول: کله يې چې د اشغالګرو هديره وپېژندله:
شهيد عبدالله عزام چې د القاعده او د نړيوال جهاد بنسټګر ګڼل کېږي، د نړۍ د مجاهدينو د تربيې لپاره مرکزونه جوړ کړل، څو داسې شخصيات وروزي چې د اسلامي نړۍ لپاره قدوه وي او اسلامي امت ته تېر وياړلی عزت او درناوی بيا را ژوندی کړي، شيخ اسامه د شهيد عبدالله عزام په دغه مدرسه کې د شاګرد په حيث زده کړې پيل کړې.
سرو لښکرو چې په افغانستان مستقيما يرغل وکړ، شيخ اسامه دا مهال په سعودي کې و، د رسنيو له لارې د افغانستان له وضعې څخه خبرېده، غوره يې وګڼله چې نېغ په نېغه حالات وڅاري، شيخ نه غوښتل چې د رسنيو دروغ او رښتيا ګډ سره ومني، همدا و چې د کراچۍ له لارې پېښور ته راغی، په پېښور کې يې له جهادي مشرانو سره وکتل، د افغانانو په خاوره د جهاد د قضيې په ټولو جوانبو يې ځان پوه کړ، په دې قانع شو چې قضيه يوازې د افغانستان نه، بلکې د ټولې اسلامي نړۍ ده او د خورا زيات اهتمام وړ ده، شيخ اسامه نېږدې يوه مياشت په پېښور کې تېره کړه، له هغې ورسته بيا سعودي ته لاړ. شيخ اسامه چې سعودي ته ورسېد، سمدلاسه يې د کورنۍ غړي، خپلوان او انډيوالان د سترګو ليدلي حال څخه خبر کړل. په سعودي کې يې د افغان مجاهدينو لپاره د مالي مرستو په راټولو بوخت شو، چې څه مال يې راجمع کړ، يو ځل بيا پاکستان ته ولاړ، په پاکستان کې شيخ اسامه د مجاهدينو په مرکزونو او د مهاجرينو په کمپونو شخصا ګرځېده، د هغوی احوال يې اخيسته او مالي مرسته يې ورسره کوله.
شيخ اسامه په لومړي ځل د جهاد ګرمو سنګرونو ته د روسانو د يرغل په اولنيو اونيو کې لاړ، د جلال آباد په لويه جګړه کې يې شخصا په خپله ګډون وکړ. کله چې شيخ اسامه د افغانستان غرونه او ستراتيژيك موقعيت وليد، نو د مجاهدينو لپاره يې مرکزونه جوړ کړل او دوی ته يې پراخه مالي امکانات برابر کړل.
شيخ اسامه چې په خپله د توري اتل و په (۱۹۸٤ز) کال کې د عرب مجاهدينو لپاره د بيت الأنصار په نوم مرکز جوړ کړ، بيت الأنصار د عرب مجاهدينو لپاره لومړی تمځای و، دلته د عرب مجاهدينو استقبال کېده، د افغانستان له وضعې خبرېدل او بيا جهاد ته لېږل کېدل. شيخ اسامه چې د مجاهدينو له مشرانو سره يې اړيکې خورا تينګې وې او عرب مجاهدين چې له ده سره په بيت الأنصار کې پاتې کېدل، د څه مودې له تم کېدو وروسته افغان مجاهدينو ته لېږل.
دلته د شيخ اسامه اړيکې له شهيد عبدالله عزام سره نورې هم پخې شوې، دواړو اتلانو په ګډه د کار کولو هوډ وکړ، څو کارونه منظم او په يوه غشي دوه ښکاره وکړي.
شيخ اسامه په (۱۹۸٦ز) کال کې د خپل تنظيم د ساحې د پراخولو لپاره هڅې پيل کړې، د مجاهدينو لپاره يې (٦) ستر روزنځايونه جوړ کړل، د هغوی په فکري او بدني روزنې يې پيل وکړ، دی پوهېده چې عرب مجاهدين چې دلته ښه وروزل شي د ټولې اسلامي نړۍ لپاره او په ځانګړې ډول د عربي هېوادونو لپاره قيادتونه دي. نوموړی د اسلامي خلافت ارمانجن و، دا هڅې يې پيل کړې، چې د اسلامي امت د هر قوم او قبيلې کسان په نړيوال اسلامي او جهادي فکر وروزي، د "امت" تصور او نظريه يو ځل بيا ژوندۍ کړي، مسلمان ته دا فکر او تصور ورکړي چې عجم، عرب، تور، سپين چې مسلمان وي سره ورونه دي، سرحدات په اسلام کې هيڅ اهميت نه لري، هغه يوازې د يو ځانګړي ځای او خاورې د ازادۍ لپاره کوښښ نه کاوه، هغه د ټول اسلامي امت د خلاصون لپاره راوتلی و. د روسانو پر ضد جهاد د شيخ اسامه لپاره ښه طلايي چانس و، ده له دغه جهاد څخه يې پوره فايده واخيسته، نوموړي غوښتل چې د افغانانو د جهاد په برکت به اسلامي خلافت يو ځل بيا ژوندی شي، خو ارمان يې د هوس او د پيسو څو مينانو له خاورو سره

خاورې کړ.
شيخ أسامه چې تر دې مهاله پرې د چا لخوا څه بنديز نه و، مجاهدين يې په پراخه پيمانه جهاد ته لېږل، د روسانو پر ضد د جهاد په دوره کې يې زيات وخت په سنګر کې تېرولو، سعودي ته يې تګ راتګ خورا کم و او له سخت ضرورته پرته چېرې نه تللو.

## "القاعده" څه و؟

شيخ اسامه له ملګرو سره د "سجل القاعده" په نوم مرکز تاسيس کړ، د دغه مرکز موخه او هدف دا و، چې عرب مجاهدين او يا نور بهرني مجاهدين چې افغانستان ته د جهاد لپاره راتلل، د هغوی بشپړ تفصيلات دوی له څانه سره ثبت کړي، د مثال په ډول کله راغلل، کومې جبهې سره لاړل، چېرې تېږي شو، شهيد دي که ژوندي، اسير دي که ازاد او داسې نور معلومات دوی له ځانه سره ثبتول. دغه د نوم ثبتونې مرکز د وخت په تېرېدو سره د تنظيم شکل اختيار کړ.
شيخ اسامه په (١٩٨٩ز) کال کې سعودي ته بېرته لاړ، تر (١٩٩١ز) کال پورې په سعودي کې پاتې شو، بيا دوهم ځل لپاره بيا افغانستان ته راغلو او د مجاهدينو د خپلمنځي جګړو له امله له افغانستانه بيا سوډان ته لاړ او هلته يې ځينې خيريه کارونه پيل کړل.
سعودي حکومت سره اختلافات:
کله چې سرو لښکرو په افغانستان کې شرمېدلې ماتې وخوړه او له افغانستانه وتلو ته اړ شول، شيخ اسامه سعودي ته سفر وکړ، شيخ چې سعودي ته لاړ، هلته حکومت د سفر کولو او له سياسي فعاليته منع کړ. شيخ چې فکر او نظريه يې نړيواله وه، د اسلامي خلافت لپاره يې خپل مال او ځان قربان کړی و، کله يې زړه غوښتل چې په ارام کښېني، شيخ اسامه دې حالت خورا ځورولو. په (١٩٩٠ز) کال کې چې عراق په کويت بريد وکړ او سعودي حکومت باندې يې د بريد کولو ګواښونه کول، نو شيخ اسامه د سعودي پاچا فهد او د کويت پاچا جابر الصباح ته وړانديز وکړ، چې دی د دې دواړه هېوادونو سرحدات ساتي، خو دواړو ونه منله او په مستقيم ډول يې له امريکا څخه کومك وغوښت، شيخ اسامه سعودي ته د امريکايي پوځيانو له ننوتلو سره کلك مخالفت وښود، دا يې اشغال او د حرمينو بې حرمتي وګڼله، همدا و، چې د آل سعود له کورنۍ سره يې اړيکې خورا ترينګلې شوې، شيخ د سعودي حکومت دا عمل غنده، دا يې د اسلام له نواقضو څخه باله او کفر يې ګاڼه.
شيخ اسامه د نړۍ علماء دې ته هڅول چې د سعودي حکومت د دې اقدام پر ضد پاڅي او د سعودي ناځوانه دولت په ضد فتوی ورکړي، شيخ په سعودي کې په علني توګه د امريکايي پوځ د ويستلو لپاره کار پيل کړ، خو د ستونزو له امله په دغه کوښښونو کې کامياب نه شو.
د شيخ اسامه ژوند په سعودي کې تريخ شو، همدا و، چې سعودي پريښودلو ته اړ شو، له سعودي حکومت څخه يې د سفر اجازه وغوښته، هماغه و، چې په دې شرط چې د کارونو له پای ته رسولو څخه وروسته به بېرته سعودي ته راګرځي د سفر اجازه ورکړه. شيخ اسامه سعودي الی الأبد پرېښود او افغانستان ته يې هجرت وکړ، د خپلمنځي جګړو له امله له افغانستانه بيا د سوډان پلازمېنې خرطوم ته لاړ. د شيخ اسامه ټوله سرمايه سعودي حکومت منجمده کړه، بانکي اکاونټونه يې وربند کړل او د سعودي تابعيت يې ورختم کړ. د سعودي حکومت دغه ناځوانه کارونو دی وهڅولو چې د سعودي د ظالم دولت پر خلاف دريځ خپل کړي.
کله چې نوموړی له سعودي څخه افغانستان ته راستون شو، په افغانستان کې نوی نوی د ډاکټر نجيب حکومت رنګ شوی و، ځينې مجاهدين په خپلو منځونو کې په جګړو اخته وو، شيخ اسامه عرب

مجاهدینو ته فرمان صادر کړ، چې په کورنۍ جګړو کې دې هیڅکله ګډون نه کوي، شیخ اسامه د مجاهدینو د مشرانو تر منځ روغه جوړه کې خورا ډېرې هلې ځلې وکړې، خو متأسفانه کامیاب نه شو. شیخ اسامه چې د افغانستان ستونزمن حالات ولیدل، پوه شو چې دلته ورته ژوند نور سخت دی، نو د سوډان په لورې یې مخ کړ.

## سوډان کې ژوند:

شیخ اسامه په (۱۹۹۱ز) کال کې سوډان ته پټ له ملګرو سره پټ سفر وکړ، تر دې مهاله یې چې پیسې لا منجمدې نه وې، سوډان سره یې په پراخه پیمانه کومکونه وکړل، شیخ اسامه د بیا رغونې تېکې، د باغونو جوړول او د خرطوم او بور سوډان ترمنځ سړک ( دا د سوډان تر ټولو لوی سړک دی ) په شخصي مصارفو جوړ کړ.
(۱۹۹۲ز) کال شیخ اسامه چې په سوډان کې اوسېده، د سعودي حکومت لخوا ورته په ځو وارې وړاندیزونه وشول، چې سعودي ته بېرته ستون شي، خو ده ونه منله، همدا و چې دده ټوله سرمایه یې منجمده کړه او دوه کاله ورسته یعنې په (۱۹۹٤ز) کال کې یې د سعودي تابعیت هم ورختم کړ. شیخ باندې دا تور هم و، چې د ریاض په چاودنو کې یې لاس و.
له دغو پېښو وروسته د امریکا او سعودي حکومت سوډان باندې خورا زیات فشار واچولو، ځو اسامه له سوډانه وباسي، همدا و چې شیخ اسامه په افغانستان کې له هغو مخلصو مجاهدینو سره چې دده پرې له پخوا اعتبار و او کلکه اندیوالي یې ورسره لرله تماس ونیو، شیخ له مرحوم مولوي محمد یونس خالص بابا سره چې په ننګرهار کې یې خورا زیات نفوذ لرلو اړیکې ټینګکې او له سوډانه ننګرهار ته راغی.
شیخ اسامه چې د امت غم ارام ته نه پرېښوده، په ننګرهار کې مجاهدینو لپاره روزنځایونه جوړ کړل، مولوي خالص بابا رحمه الله په خپله فامیلۍ کې چې د مجاهدینو لپاره یې له دولت څخه اخیستې وه، شیخ اسامه او ملګرو ته څو جریبه ځمکه ورکړه، مولوي خالص بابا خپل ملګري وهڅول، چې له شیخ اسامه سره هر اړخیزه مرسته وکړي او د هغه مېلمه پالنه وکړي.
طالبانو ننګرهار په بشپړه توګه ونیوه، شیخ اسامه په ننګرهار کې په ډېره ښه توګه سره خپل جهادي کارونو ته ادامه ورکوله، چې طالبانو کابل ونیو. اسلامي امارت چې د افغانستان (۹۵) سلنه ځمکه باندې حاکم شو، امیرالمؤمنین شیخ اسامه ته هرکلی ووایه، د هغه حمایت یې اعلان کړ او کندهار ته یې وبللو، په دغه موده کې سعودي چې د اسلامي امارت سره یې سفارتي اړیکې درلودلې، په ځو وارې یې د شیخ اسامه د سپارلو غوښتنه وکړه، خو اسلامي امارت د سعودي غوښتنه اسلامي احساس او افغاني دود سره په ټکر کې وګڼله، ځکه شیخ د افغانانو د مېلمه او ورور په توګه په افغانستان کې اوسېده، اسلامي امارت دا ډېره ناځواني ګڼله چې خپل ورور او مېلمه دې دښمن ته تسلیم کړي.
د (۱۹۹۷ز) کال په پای کې شیخ اسامه د خپلو جهادي کارونو د بیا پیل کولو لپاره ملا وتړله، تر ټولو د مخه یې د افغانستان او پاکستان علماوو څخه داسې فتوی وغوښته، چې په خلیج کې د امریکایي ځواکونو په اړه یې دریځ، تایید کړي. شیخ اسامه په علني توګه د امریکا پر خلاف جهاد اعلان کړ، همدارنګه په یوه خبري ناسته کې یې په امریکا د بریدونو ګواښ هم وکړ.

## د امریکا په مقابل کې جهاد:

(اګست ۱۹۹۸ز) کال په کینیا او تنزانیا کې د امریکا په سفارتونو چاودنې وشوې، چې امریکایي

چاروالکو د دغو چاودنو تر شا د شیخ اسامه لاس وباله، امریکایانو د دې په بدل کې هغه د دوا کارخانه چې شیخ اسامه په سوډان کې جوړه کړې وه، بمبار کړه. همدارنګه په خوست او کندهار یې څو توغندي وویشتل چې شیخ له خپلو ملګرو سره په کې بچ پاتې شو. له دغو چاودنو وروسته امریکا پر اسلامي امارت نور هم فشار زیات کړ، شیخ اسامه یې وغوښت، خو په هر وار اسلامي امارت د امریکا غوښتنه ردوله.

په (۱۹۹۹ز) کال کې شیخ اسامه د امریکا د ایف بي آی په تور لست کې د اهمو مطلوبو کسانو په نوملړ کې شامل شو.

شیخ اسامه لکه مخکې مو چې یادونه وکړه په یوه ناسته کې علنا د امریکا پر خلاف د جګړې اعلان وکړ، همدا و چې د شیخ اسامه ملګرو (٤) امریکایي الوتکې پتې کړې، چې دوه الوتکې د نیویارک د نړیوال تجارتي مرکز دوه ودانیو سره د ستمبر په ۱۱مه ۲۰۰۱ز کال ټکر کړې او دغه دوه ستري ودانۍ یې له منځه یوړلې، درېیمه الوتکه په بنسلفانیا کې وغورځېدله، څلورمه الوتکه یې د پنتاګون (د امریکا دفاع وزارت) سره ټکر کړه. په دغو پېښو کې نیږدې درې زره امریکایان ووژل شول.

د امریکا لپاره پر افغانستان د برید کولو پلمه برابره شوه، له اسلامي امارت څخه یې غوښتنه کوله چې یا خو به اسامه راکوئ او یا ځان جنګ ته تیار کړئ، د اسامه بن لادن د ورکړې خبره اسلامي امارت په هیڅ شکل سره نه شوه منلای، د اسلامي ورورولۍ احساس او غرور دا اجازه نه ورکوله چې یو ورور او مېلمه دې کافر ته ور تسلیم کړي.

امریکا د پاکستان له کراچۍ، د بحر له لارې په (۷ اکتوبر ۲۰۰۱ز) کې بمبار وکړ، د ځمکې له لارې شمالي ټلوالې او پخوانیو پاټکیانو اسلامي امارت سره جګړه پیل کړه. تقریبا له دوه میاشتو مقاومته وروسته او د سختې ولسي خسارې له کبله اسلامي امارت ښاتک غوره کړ او هېواد امریکایانو اشغال کړ، په ټانک سپور کرزی یې عبوري رئیس جمهور وټاکه، ټول پخواني جنګسالاران د امریکا تر څنګ ودرېدل. د اسلام او مسلمانۍ نوم اخیستل ګران شو، امریکا نارې سورې وهلې چې یا له موږ سره ودریږئ یا له ترهګرو (مسلمانانو) سره!

د اسلامي امارت مجاهدین غرونو ته وختل، ژوند ورته په دنیا کې ګران شو، خو همت یې ونه بایله، لوړه تنده یې قبوله کړه، خو تسلیم نه شول، د امریکا د غرور د ماتولو لپاره یې چریکي عملیات پیل کړل.

شیخ اسامه، ایمن الظواهري او امیرالمؤمنین د غرونو پناه ګزین شول، امریکا خپل ټول توان سره په دې ونه توانېدله چې دوی پیدا کړي، توره بوړې غرونه یې له یوې مخې په شیخ اسامه پسې چې همدلته پټ و، چاڼ کړل، غرونه یې وسوځول، بمبار یې کړل، خو حافظ او ناصر الله دوی له هر څه په امن و امان کې وساتل.

(۲۰۰۱ز) کال څخه وروسته د شیخ اسامه د مرګ او ژوند په اړه بېلا بېل راپوروونه خپاره شول خو په (۲۰۰٤ ز) کال کې شیخ په یوه فلم کې ښکاره شو، چې د امریکا ټولې بې بنسټه ادعاوې یې رد کړې.

وخت په وخت د شیخ اسامه ویډیو او غږیز پیغامونه خپرېدل، هغه خپلو ملګرو ته د صبر او استقامت ویل، هغه همېشه ویل چې هیڅکله به د امریکا پر ضد له جنګه په ارام کېنړنم، تر څو چې په فلسطین کې مسلمانان په ارام نه شي او تر هغې چې د امریکا اخري عسکر د محمدصلی الله علیه وسلم د امت د ځمکې څخه وتلی نه وي.



## زهد، تقوی او اخلاق:

شیخ اسامه که له یوې خوا د خپلو ملګرو په منځ کې په غیرت، جنګي پوهې او زړورتیا شهرت درلود، له بلې خوا یې د زهد، تقوی اوعاجزۍ ساری په ډېرو کمو خلکو کې تر سترګو کېده، دی د تقوی او پرهېزګارۍ یو نمونه اوسمبول و.

د جنګ په میدان کې هغه خپلو ټولو ملګرو ته دا توصیه کوله، چې بې ګناه خلکو ته څه زیان او تکلیف ونه رسوي. ولسي خلکو سره ښه چلند وکړي، د اسامه په لیکونو کې دې ته ښه اشاره شوې.

د شیخ اسامه ملګري د دده په اړه وايي چې همېشه به روژه و، د تهجد لمونځ یې هیڅکله نه پرېښوده، خپلو ملګرو سره یې ددې آیت په مصداق چلند کولو: {اشدآء علی الکفار رحماءُ بینهم} یعنې مومنان د کفارو په مقابل کې خورا سخت دریځه او په خپلو مینځو کې پریوبل مهربانه وي.

د شیخ اسامه په اړه دده نېږدې ملګری ډاکټر ایمن الظواهري وايي چې: نوموړی خورا زیات وفاداره او په وعده ولاړ سړی و، نوموړي د خپلو ملګرو قربانۍ هیڅکله نه هېرولې، په ځانګړي ډول د ستمبر د ۱۱مې په پېښه کې شهید ۱۹ کسان به ده همېشه یادول، له الله جل جلاله څخه یې ورته د مغفرت دعاګانې کوله.

میلیونر شیخ اسامه په افغانستان کې په داسې کور کې ژوند کاوه، چې یو عادي سړی هم په کې ژوند کولو ته زړه نه ښه کوي، وران ویجاړ ختین کور، ماتې دروازې او داسې نور هغه څه وو، چې د میلیونر اسامه په کې ددې امت د بیا د احیاء په خاطر شپې سبا کولې.

هغه کولای شول چې په حرم کې کېني، روژې ونیسي، زکاتونه ورکړي، لمونځونه وکړي، خو نه ! هغه ځان له دې زیات مسئوول ګڼلو، په حرم کې کېناستل ورته حرام ښکارېدل، هغه لیدل چې مسلمان سوځي، وژل کیږي، له کوره ویستل کیږي او دی دې په حرم کې په ارامه ناست وي. شیخ اسامه ته په حرم کې له کېناستلو څخه دا زر وارې غوره ښکارېده، چې دې امت کې د جهاد روح بیا تازه کړي، مسلمان امت له غلامۍ آزاد کړي، تېر عزت او ویاړ یو ځل بیا مسلمانانو ته ورپه برخه شي. له همدې امله یې سختۍ، لوږې او تندې ګرمې ومنلې.

## شهادت:

بالاخره د جهاد ستر سالار، امام، شهید اسامه بن لادن د دوشنبې په سهار (مې میاشت ۲مه ۲۰۱۱) د امریکایي بحري ځواکونو په عملیاتو کې چې (۲۵) تنو په کې برخه اخیستې وه، د پاکستان په ایبټ اباد ښار کې د زوی په شمول په شهادت وروسول شو. (انا لله وانا الیه راجعون)

د شهید اسامه بن لادن په اړه د اسلامي نړۍ ولسونو په یوه غږ دا وویل چې:

"عشت عزیزا ومت شهیدا" د عزت ژوند دې وکړ او شهید شوې. د مسلمان ولسونو لخوا ورته د "محي الجهاد" سپېڅلی لقب ورکړل شو.

د شهادت خبر یې په نړۍ کې د اور په شان خپور شو، له هغې وروسته چې امریکایي جمهور رئیس بارك اوباما د اسامه د شهادت اعلان وکړ، د درې یا څلور ورځو په تېرېدلو سره د شیخ اسامه د شهادت



خبر په رسنیو کې (۸٤) میلیونه واره ذکر شوی و او د ۲۱مې پېړۍ درېیم ستر خبر و.

## کفن، دفن:

شیخ اسامه چې د کوم هېواد تابعیت یې نه لرلو، کوم هېواد په رسمي توګه د هغه جسد ونه غوښت، دامریکایانو په ویناچې هفوي یې په همدې پلمه جسد بحر العرب ته وغورځاوه، که څه هم د جلال اباد نجم الجهاد فامیلۍ مېشتو (خالص بابا فامیلۍ) د الجزیرې له لارې د شیخ شهید جسد وغوښت، خو امریکا نه غوښتل چې د ده مزار له مرګه وروسته هم د جهاد او سرلوړۍ الهام ورکړي.

په رسمي توګه ټولو اسلامي (!) هېوادونو غیر د فلسطین د حماس څخه د شیخ په شهادت خوښي څرګنده کړه. د شیخ اسامه غایبانه جنازې په افغانستان، فلسطین، یمن، عمان، کویت، پاکستان، سوډان، موریتانیا او نورو هېوادونو کې وشوې.

هو ! شیخ اسامه شهید شو، د جهاد او فداکارۍ یو ستره ډېوه ګُل شوه، خو اسلامي امت د شیخ اسامه په څېر په زرګونو نور ځوانان او قیادتونه لري، چې اسلامي امت له ښکېلو بدمرغیو څخه خلاص او پخوانی عزت او ویاړ یو ځل بېرته ترلاسه کړي، هره مور اسامه زېږوي د محمد صلی الله علیه وسلم هر امتي اسامه دی، دا نړۍ د اسامه بن لادن په څېر سلګونه نه، بلکې په زرګونو اسامه لري، دا امت اوده دی، بیدارولو ته اړتیا لري، دوی ته د بلال اذان په غوږ کې کول غواړي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث وریادول غواړي:

« "اذا... وترکتم الجهاد سلط الله علیکم ذلا لن ینزعه عنکم حتی ترجعوا الی دینکم"

که...او جهاد مو پرېښود، الله به مو داسې ذلیله کړي، چې هیڅوك به مو له دې ذلیل ژونده خلاص نه کړي، څو پورې خپل دین ته رجوع ونه کړئ ( یعنې جهاد پیل کړئ ).

او د عمر رضي الله عنه دا وینا وریادول غواړي چې: "نحن قوم أعزنا الله بالإسلام فمهما ابتغینا العزة بغیره أذلنا الله". موږ ته الله په اسلام عزت راکړی، که د اسلامه پرته مو په بل څه کې د عزت موندلو کوښښ وکړ، الله به مو ذلیله کړي.

په دې هیله چې د شهید اسامه بن لادن ارمانونه دده ملګري او همسفره پوره کړي.

روح یې ښاد او یاد یې تل



# کرزی غواړي (اسرائیل) یو هیواد وي !

عاصم څارکر

د یو مسلمان په حیث به دې ته اړتیا نه وي چې ووایو: اسرائیل د اسلام دښمنان دي او موږ باید ورسره د خپلې عقیدې په بنیاد دښمني وپالو، بلکې په ټوله کې یهود د یو ملت په څېر هم د مسلمانانو سرسخته دښمنان دي. الله تعالی فرمایي {لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا} -المائدة-۸۲ ) اسلام سره د یهودو د دښمنۍ تاریخي شالید به ټولو ته څرګند وي، دغه راز مسلمانان هم د اسلامي تاریخ په اوږدو کې دې قوم سره خپله دیني دښمني پر مخ وړې، خو د شلمې پېړۍ په نیمایي کې د "اسرائیلو" په نوم د یو دولت له منځته راتګ وروسته هم اسلامي نړۍ د هغوی مخالفت څرګند کړ او لا هم په دې نوم یو هېواد سره په خپل عداوت ولاړ دي.

کله چې د (۱۹۴۸م) کال د مئ د میاشتې په څوارلسمه نېټه د منځني ختیځ په یوه ټوټه ځمکه د اسرائیلو په نوم د یو هېواد د رامنځته کېدو اعلان وشو، په سمدستي توګه یې اسلامي نړۍ مخالفت وکړ او یوازې یوه ورځ وروسته د منځني ختیځ یو شمېر هېوادو نو عملاً د اسرائیلو پر ضد جنګ اعلان او پیل کړ، خو دا چې له یوې خوا اسلامي امت یو واحد قیادت نه درلود، ډېری هېوادونو تازه تازه خپلواکي تر لاسه کړې وه او د عثماني خلافت په څېر یو قوي ځواک د غربي نړۍ په دسیسو له منځه تللی و.

له بلې خوا د اسرائیلو تر شا هماغه هېوادونه ولاړ وو چې نورو هېوادونو ته یې په شرطونو استقلال ورکاوه او په دوهمه نړیواله جګړه کې یې بریالیتوب په برخه شوی و، له اروپا څخه جوپې جوپې یهودان راروان وو او د بیت المقدس په شاوخوا کې مېشتېدل، د یهودو د مشرانو لخوا کلونه پخوا طرحه شوی پلان د عملي کېدو او بریالیتوب په درشل کې و او دوهمې نړیوالې جګړې د ملګرو ملتونو (UN) په نوم غربي نړۍ ته یو داسې له شیطانت ډکبچی زېږولی و، چې هر څو کې یې پرې وېرول، د اسرائیلو پر ضد هغه جګړه دومره بریالی نه شوه، چې دغه د سرطان دانه په لومړي سر کې د اسلامي نړۍ له بدنه وباسي، اسلامي امت ته له دې مرضه نجات ورکړي.

خو: کله چې په ملګرو ملتونو کې د غړیتوب د تر لاسه کولو وخت شو؛ نو ټولو اسلامي هېوادونو یې رسمیت پېژندنې څخه انکار وکړ او په یوه خوله یې رد کړ، چې یو یې افغانستان و، افغانستان له هغې مودې تر اوسه چې نژدې څلورشپېته کاله کیږي په حکومتي او ملي کچه له اسرائیلو سره هیڅ راز اړیکې نه دي ساتلي.

دولس کاله د مخه کله چې امریکا او ملګرو یې افغانستان اشغال کړ، پر هېواد یې پوځي تېری وکړ او لسګونه زره بهرني سرتېري په افغانستان کې مېشت شول، بیا هم عملاً اسرائیلو، چې د امریکا کلک متحد دی، نه خو افغانستان ته خپل عسکر واستول، نه یې په ډاګه د مالي او لوژستیکي مرستې اعلان وکړ او نه یې د افغانستان په موضوع کې ډېره دلچسپي وښودله، علت یې دا ښودل شوی چې افغانان له اسرائیلو سره ځانګړې حساسیت او دښمني لري، که چېرته هغوی هم افغانستان ته عسکر واستوي، نو په لومړي سر کې به له خورا سخت غبرګون سره مخ شي، جګړه به په پیل کې د ماتې په برخلیک اخته شي او امریکا به هغه یو شمېر ملاتړي هم له لاسه ورکړي، چې اوس یې لري.

سره له دې چې اسرائیلو د امریکا او متحدینو پوځي ملاتړ و نه کړ او افغانستان ته یې نه عسکر واستول او نه نظامي قوت، خو ویل کیږي چې په افغانستان کې د کاناډا او استرالیا لخوا کارېدونکې بې پیلوټه الوتکې د اسرائیلو جوړې او دغو هیوادونو ته یې صادرې کړې دي. په داسې حال کې چې اسرائیلو په افغانستان کې پوځي حضور نه درلود او نه یې مالي مرستې راروانې وې، خو تر بل هر چا افغانستان ته ډېر متوجه و، د افغانستان په اړه به یې وخت په وخت د امریکایي پوځي او ملکي لوړ رتبه مسئولینو سره لیدنې کتنې کولې او د افغانستان موضوع به یې په دقت سره څارله، چې همدغه لړۍ، دریځ او پالیسي یې اوس هم روانه ده.

په افغانستان کې جګړه د امریکا، اروپا او ځینې اسیایي هېوادونو د سرتېرو په وینو او پیسو پر مخ روانه ده، خو په دې ټوله موده کې اسرائیلو یوازې او یوازې د خپل منافق خصلت او د اسلام په مقابل کې د ربدلو په نیت په افغانستان کې داسې کړنو ته لاس واچاوه، چې هم په اصطلاح د اسلام پښې ووهي (لا قدر الله) او هم د دې سپېڅلي هېواد د مسلمان ملت ملا ماته کړي.

لکه چې ویل کیږي اسرائیل د داسې تاریخي اثارو او لرغونو توکو په پېرلو لګیا دي، چې په افغانستان کې له پخوا څخه د یهودو شتون ثابت کړي او یو شمېر دغسې توکي یې تر لاسه کړي هم دي، کېدلای شي چې په حکومتي کچه یې مرسته شوې وي، ګوندې دغه منافق ملت کوښښ کوي په افغانستان کې خپلې ریښې په زیات ورسوي او په راتلونکې کې عملاً زموږ ګران هېواد ته لاسونه را اوږده

همدا رازېي خپلو شومو اهدافو ته د رسېدو لپاره په افغانستان کې د فحشاء او عريانيت د خپراوي په هدف هلې ځلې پيل کړې، د اسلامي شعايرو او اصولو د ماتولو او منځه وړلو په هدف يې لاس پښې وهل پيل کړل، د افغانستان د ملي عنعناتو د مسخ کولو لپاره يې کوښښونه پيل کړل او خپلو اهدافو ته د رسېدو لپاره يې د همدې خاورې له منځه ځينې خرڅ شوي او لادينه څېرې غوره کړې.
د اسرائيلو د اهدافو د پلي کولو لپاره يو ستر چينل "طلوع" تلويزيون دی، چې اسرائيل يې مالي تمويل کوي او دغه تلويزون په بشپړ اخلاص سره پردۍ اجنډا پر مخ وړي، د ځوانانو بې لارې کول، له اسلامي او افغاني اصولو او ضوابطو بغاوت ته هڅول، د پرديو پيروي او نوردې ته ورته هغه څه دي چې طلوع تلويزون يې د تر سره کولو کوښښ کوي.
دغه راز اسرائيل په خپله د هېواد په زړه کې په لسګونو جاسوسان او ايجنټان لري، چې ډېر کم يې څرګند دي، خو هغه شمېر چې لا پېژندل شوي نه دي، کېدای شي له دې دوه او درې برابره وي.
دا ټول هر څه د پردې تر شا روان وو، داسې اسناد او شواهد نه وو خپاره شوي، چې په افغانستان کې د اسرائيلو عملي او بالفعل شتون ثابت کړي او کېدای شي دا په نفاق کې د يهودو پخې او تاريخي تجربې نتيجه وي، چې نه د چا پام وراوښت او نه چا په دې برخه کې ډېر کار وکړ، بلکې هم يې په خپله خپلو شومو موخو ته د رسيدو په لارکې له هېڅ ګام پورته کولو دريغ و نه کړ او نه هغو په خپلو خدماتو کې ناغيرې وکړه چې د همدوی په چوپړ کې دي.
په ۲۶/۳/۲۰۱۳ نېټه د اسلامي امارت ځو تنو قهرمانو مجاهدينو د ننګرهار ولايت په مرکز جلال اباد کې پر يو پوځي روزنيز مرکز استشهادي بريد ونه تر سره کړل، د عملياتو له پای ته رسېدو وروسته د اسلامي امارت ويانند ذبيح الله مجاهد په خپلو څرګندونو کې وويل چې په دې بريالیو عملياتو کې يو شمېر يهودي او د اسرائيلو تابعيت درلودونکي روزونکي هم له منځه وړل شوي دي.
په ځانګړې توګه د يهودو او اسرائيلو يادونه زما لپاره تجسس زيږوونکې وه، زه په دې فکر کې وم چې د اسرائيلو شتون او په اصطلاح افغان ځواکونو ته د اسرائيلي روزونکو په لاس روزنه او ترېنينګ ورکول راته تر دې بريده عجيبه ښکاره شول، چې ما فکر کاوه، يو افغان که ډېر هم وغولېږي، د امريکا او لندن ډالر او پاونډونه ورته مرستې وبريښي، خپل او پردی ورته د پرديو دغه بې بلنې راتګ بيا هم ميلمستيا تعبير کړي، هغوی ورته په خپلو فتواوو او شريعت پوهنه مستامنين معرفي کړي، د هغوی ساتنه يې د نده وبولي، مومن او افغان ضمير به يې دا څنګه ومني چې يو اسرائيلي يا يهودي ورته روزنه ورکوي او د خپل وروروژلو ته يې چمتو کوي.
زما سره راولاړې شوې پوښتنې نه وې حل شوې او لا هم په په ځواب پسې ګرځېدم چې د اسلامي امارت د فرهنګي کميسيون لخوا د خپريدونکې (مورچل) مجلې پنځه پنځوسمه ګڼه راورسېده او په همدې مجله کې د جلال اباد د عملياتو له تنظيموونکو سره مرکه شوې وه.
د عملياتو تنظيموونکو په خورا واضحه ټکو ويلي وو، چې د جلال اباد په روزنيز مرکز کې اسرائيلي روزونکو شتون درلود او ډېری يې له منځه وړل شوي دي، نور نو د شک ځای پاتې نه و، يوازې همدومره چې خپله د کرزي د رژيم چارواکي له اسرائيلو سره په تعلق اعتراف وکړي او له اسرائيلو سره د کرزي د اداري اړيکې په ډاګه شي.
په همدې موضوع پلټنو راته يو څه روښانه کړل او هغه په دې ډول چې له يوې اوږدې مودې راهيسې اسرائيلو د خپلو ورکو شويو قبيلو د لټون تر نوم لاندې داسې تبليغات پيل کړي او يا يې په خپلو تحقيقاتو او څېړنو کې داسې ثابته کړې ده، چې ګونډې د افغانستان يوشمېر قبايل د يهودو برخه ده، اسلامي مفکرين او د يهودو د فعاليتونو څارونکي باور لري چې له همداسې اعلانونو، مدني ټولنو، مؤسسو او څېړنيزو مرکزونو اسرائيل په حکومتي کچه کوښښ کوي چې افغانان يهوديت ته مايل او له اسلامه يې واړوي.
همدا راز ويل شوي چې د دوه زره او شپږم ميلادي کال په لومړيو کې د اسرائيلو د بهرنيو چارو د وزارت دوه تنو مرستيالانو او د حامد کرزي د رژيم د بهرنيو چارو د وزارت څو تنو لوړرتبه چارواکو په لنډن کې کتلي او د پټو اړيکو د تقويې لپاره يې خبرې کړې، دا ځکه چې له دې وړاندې د کابل او تل ابيب تر منځ اړيکې جوړې شوې وې، او وخت په وخت د لا پياوړتيا لپاره ليدنو کتنو ته اړتيا وه.
دغه راز د دوه زره او پنځم کال د اکتوبر په مياشت کې حامد کرزي د يوې اسرائيلي ورځپاڼې (يديعوت احرونوت) سره په مرکه کې وويل: هيله لري چې له اسرائيلو سره اړيکې پيدا کړي.
له هغې يو کال وروسته په دوه زره او شپږم ميلادي کال کې په يو بهرني کنفرانس کې کرزي وويل چې: له اسرائيلو سره د

ډيپلوماتيکي اړيکو د جوړولو شو تتيا نه شي ردولای.

خو اوس داسې ښکاري چې حامد کرزی خپل دغې ارمان ته رسېدلی او په مذهبي ډګر کې د امريکا د بادار غلامي يې هم په نصيب شوې ده. نوموړي د روان ميلادي کال د جون د مياشتې په نهمه نېټه د قطر په مرکز دوحه کې د (امريکا او اسلامي نړۍ) تر عنوان لاندې جوړ شوي لسم کنفرانس کې په خورا واضحه توګه له اسرائيلو سره خپله همدردي او دوستي څرګنده کړه.

هغه د څو غولوونکو الفاظو او جملو له ښکته پورته کولو وروسته په ډاګه وويل: "آيا مسلمانان غواړي چې اسرائيل سيمه پرېږدي؟ نه، مسلمانان داسې نه غواړي. زه د يو مسلمان په حيث داسې نه غواړم. زه غواړم چې اسرائيل او د اسرائيلو خلک د نورو هېوادو نو په شان د يو دولت او ملت په څېر ژوند وکړي".

يو لړ اسناد څرګندوي چې حامد کرزي څو څو ځله د اسرائيلو اوسني جمهور رئيس شمعون بيريز سره کتلي، په اصطلاح د افغانستان د "اسلامي" جمهوريت جمهور رئيس حامد کرزي د اسرائيلو جمهور رئيس شمعون بيريز يو (ښاغلی!) سړی، او د (سولې!) مبارز بللی دی.

په دوحه کې د کابل د رژيم مشر حامد کرزي دغه څرګندونې د هغه شخصي نظر او عقيده کېدای شي، خو د يو مسلمان او افغان په څېر نه، ځکه چې اسرائيل د اسلام او مسلمانانو ابدي دښمنان دي او هغه څوک دي چې په طول د تاريخ کې يې د بيت المقدس تقدس تر پښو لاندې کړی او د يو غير قانوني دولت د رامنځته کولو څخه وروسته يې د فلسطين پر مسلمانانو چپه مېچنې وکر ځولې.

حامد کرزی تېروتی چې وايي مسلمانان نه غواړي اسرائيل له سيمې ولاړ شي، ځکه مسلمانان د همدې لپاره مبارزه کوي چې يهود له پاکې خاورې وباسي او دغې سيمې ته خپله سپېځلتيا اعاده کړي.

د يو عاقل انسان، راسخې عقيدې مسلمان او يو وطندوست افغان په حيث به د افغانستان هر وګړي د حامد کرزي کردار او د نده پېژندلې وي او پوهېدلی به وي، چې دغه مزدور ولسمشر د چا اجندا پر مخ وړي، په افغانستان کې کوم ډول حکومت او ټولنې د رامنځته کولو لپاره کارکوي او د افغانانو لپاره کوم ډول راتلونکی غواړي.

دا د يو افغان لپاره عقيدوي عار دی چې اسرائيلو ته د مسلمانانو په لومړۍ قبله بيت المقدس کې د يو دولت په توګه د اوسيدلو په حق قايليږي او په ځانګړې توګه هغه مهال چې دغه ډول څرګندونې يا موقف په حکومتي کچه اعلان شي.

موږ چې د خپلو فلسطيني وروڼو په ورځنې ژوند د غم اوښکې تويو او ډېر پردي پالان مو په دې هم ګرم بولي چې د فلسطين په خاوره د وسله وال جهاد لپاره ولې ځانونه رسوو، په افغانستان کې د شته اسرائيلو په وړاندې جګړه له هغې کمه نه بولو او که د حامد کرزي په څېر مسخه شوې څېرې دهغوی چم وکړي او د هغوی پر لار روان شي نو دوی ته هم له اصلي اسرائيلي وګړو په کمه سترګه نه ګورو.




موږ چې کله هم د (پولیس) کلمه اورو؛ نو سم د واره مو د جرم، مجرم، جرم د مخنیوي او مجرم ته د سزا ورکولو په څېر کلمې ذهن ته راځي، دا چې (پولیس) یوه انګلیسي کلمه ده؛ نو په انګلیسي کې یې ژباړه د (پاکول، د ټولنې منظمول، د نظام ساتنه کول) شوې ده.

انټرنیټ اوس ډېر څه اسانه کړي، او سړی کولای شي، په اسانۍ سره د یو څه په اړه معلومات تر لاسه کړي، د پولیس (Police) د کلمې د معنی په لټون پسې مې د ګوګل پاڼه راپرانیستله، عموماً ګوګل د یو څه په اړه د معلوماتو د ورکولو پر مهال دایرة المعارف (encyclopedia) د لومړي مصدر په توګه دربښيي، چې د ویکیپډیا په نوم یې هم پېژني، همدې دایرة المعارف (پولیس) داسې راپېژندلی:

The police are a constituted body of persons empowered by the state to enforce the) law, protect property, and limit civil disorder. Their powers include the legitimized use (of force

معنی دا چې پولیس د خلکو هغه قانوني تنه او شکل دی چې یو هېواد دا ځواك او زور ورکړی چې قانون عملي کړي، شتمني وساتي، او ټولنیزه ګډوډي له منځه یوسي. د زور قانوني استعمال هم د دوی (پولیسو) له ځواکه شمېرل کیږي).

د پولیس اړوند د یو لنډ مطلب د لیکنې لپاره د پولیسو پیژندل اړین دي، عموماً زموږ په ټولنه کې هیڅوك د پولیسو پولیسو ټولې دندې نه پېژني، همدومره یې پېژني چې هغوی د امنیت د تامین لپاره د دولت لخوا د پیسو په مقابل کې ګومارل شوي وسله وال ځواك دی او بس.

خو په اصل کې پولیس د یو هېواد هغه وسله وال ځواك دی، چې په ټولنه کې د هر ډول قانون د پلي کېدو لپاره لاس پښې ووهي، او د ماتېدو مخه یې ونیسي، مګر زموږ په هېواد کې دغه ځواك هغه څه تر سره کوي د څه په مقابل کې چې باید هغوی مبارزه وکړي، نه یوازې دا چې پولیس د جرم او مرجم مخه نه نیسي، او مجرم ته سزا نه ورکوي، په خپله د جرم په مرسته کې دي، او په خپله جرم ته لاس اچوي.

د روان میلادي کال د جون د میاشتې په نهمه نېټه په اصطلاح د افغانستان د بشرد حقوقود خپلواك کمېسیون

شوه چې په هغې کې د همدې دوه موضوعاتو په اړه د افغانستان په کچه معلومات وړاندې شوي، او دلایل يې څېړل شوي دي.
دا چې ناموسي قتل څه ته وايي، او دغه اداره يې څه ډول تعريفوي يو جلا بحث دی، خو د جنسي تيري تعريف شايد په هېڅ يوه انساني ټولنه کې له بلې توپير و نه لري.
دغه راپور په خپله محتوى کې د يادو دوو موضوعاتو په بېلا بېلو اړخونو راڅرخېدلی دی، خو د پام وړ يې د پوليسو لخوا په همدې جرمونو کې د ښکېلتيا موندنې دي، د راپور يوه برخه ښيي چې پوليس د په همدې ډول قضاياوو کې د ښکېلو مجرمانو مرسته او ملتيا کوي، په دې توګه چې نه يې نيسي او نه يې مجازات کوي، راپور وايي: (حدود ۳۲،٦ درصد عاملين اين قضايا توسط پوليس گرفتار نگرديده اند، ودر ۳۹،٥ درصد موارد عاملين و مرتکبين قضايا محاکمه و مجازات نشده اند).
نه يوازې دا بلکې د دې کمېسيون څېړنې او موندنې ښيي چې په اصطلاح پوليس په خپله په جنسي تېريو کې ښکيل دي او وايي: (حدود ۱٤،٦ درصد مجموع قضاياي قتل ناموسي و تجاوز جنسي توسط پوليس اتفاق افتاده است. اين در حالي است که پوليس وظيفه امنيت عامه و حمايت از افراد آسيب پذير را به عهده دارد).
د همدې راپور په خپرېدو سره د کابل د رژيم په اصطلاح د کورنيو چارو وزارت له خپلو پوليسو څخه په دفاع کې يوه خبر پاڼه نشر کړه چې پکې وويل شول (وزارت امور داخله جمهوری اسلامی افغانستان گزارش اخير کمسيون مستقل حقوق بشر افغانستان در خصوص دست داشتن پوليس در قتل های ناموسی و تجاوز جنسی را رد می نمايد).
د شمال جنګسالار بسم الله خان بې له دې چې د خپلو خبرو او څرګندونو پايلو ته پام وکړي، او بې له دې چې د اعلاميې د خپرولو په نتايجو غور وکړي، رسنيو ته د استولې خبر پاڼې په پای کې وايي: (موضوع ديگری که بايد ياد آوری شود اين که نشر اين گونه گزارش های نا به هنگام و نا هماهنگ می تواند خوراک تبليغات مناسبي برای گروه های هراس افگن فراهم نموده و با استفاده از آن اين گروه ها بر ضد کليت نظام سياسی افغانستان تبليغات زهر آگينی را به راه اندازند. نظامی که کمسيون مستقل حقوق بشر افغانستان بخشی از آن است و نمی تواند از گزند اين گونه تبليغات در امان باشد!).
د بسم الله محمدي په مشرۍ د (کورنيو چارو وزارت) پر ځای د دې چې ووايي پوليس په داسې جرمونو کې نه دي ښکېل، او هغه حاضر دی چې د پوليسو له ليکو قانون ماتوونکي وباسي، د (بشر حقوقو) ادارې ته ورپه زړه کوي چې دغه ډول راپورونه به د هغوی مخالفينو ته د تبليغاتو خام مواد په لاس ورکړي، او بيا به پر هغه نظام نيوکې زياتې شي چې (حقوق بشر) يې هم يوه برخه ده.
خو پښتانه وايي چې (د دروا غو منزل لنډ وي) او (د غل په غره کې هم ځای نه کيږي) مخکې تر دې چې دغه وزارت د بشر د حقوقو د کمېسيون راپور رد کړي، د روان ميلادي کال د اپريل د مياشتې په اوه ويشتمه نېټه د همدې وزارت وياند صديق صديقي رسنيو سره په خبرو کې ومنله چې د پوليسو په ليکو کې د ښځو سره جنسي زياتي شوي، او هغوی سره دغسې ډېرې پېښې ثبت شوي دي.
د (کورنيو چارو وزارت) او (بشر حقوقو کميسيون) تر منځ د نظر اختلاف او په کارونو کې نه همغږي هم هغه څه دي چې د دې ناوړه نظام په فساد دلالت کوي او دا په ډاګه کوي، چې هر يو په خپل چوکاټ کې د خپلې خوښې مالک دی.
د بشر د حقوقو د ادارې راپور په خپل ځان د شاهدۍ لپاره يو دليل دی چې د حامد کرزي رژيم له اخلاقي فساده ډک راښيي، او دا ثابتوي چې که له يوې خوا دغه اداره او کارکوونکي يې د بهرنيو اشغالګرو په خدمت کې دي، نو له بلې خوا يې اخلاق هم په صفر کې ضرب، او له هر ډول اخلاقي پوښاک څخه عاري دي.
مورد پوليسو نا اهلی او مجرمانه کردار د ثابتولو لپاره د کوډاګۍ ادارې د حقوق بشر د ادارې او کورنيو چارو د وزارت په څېړنو اداره راپورونو ته اړتيا نه لرو، او نه هم دغه ډول راپورونه د بشپړ اعتبار او باور وړ دي، ځکه چې د ياد وزارت په رأس کې د شمالي ټلوالې يو بد نامه، خاينه، غلامه او خونړۍ څېره ځای لري او د بشر د حقوقو د ادارې مشري د (سيما ثمر) په نوم د عصر د يوې بد کرداره ښځې سره ده، چې د افغانۍ مېرمنو د عزت د پلورلو او ليلامولو په موخه د غربي هېوادو نو لخوا تمويلېږي.
ويل کيږي چې سيما ثمر په خپله د (شهداء ارگنايزشن) په نوم يوه اداره لري، چې کونډو او غريبو مېرمنو ته يې د مرستندويه ادارې په توګه ورپېژني، خو بيا د همدې بې چاره او بې وزله ساده لوحو مسلمانو مېرمنو څخه د فحشاء په لار کې کار اخلي، او د خپلو غربي بادارانو په مخ کې يې د هوس د سړولو د توکي په توګه وړاندې کوي؛ نو د دغسې يو چا څخه دا تمه نه شي کېدای چې په ريښتيا دې د (پوليس) جرمونه راوسپړي او د هغوی د محاکمې غوښتنه دې وکړي.
دې ته اړتيا نه شته چې د پوليسو بې کفايتي او د ملت په وړاندې د خيانت لپاره د يوې او بلې ادارې پر څرګندونو تکيه وشي، بلکې دغسې په سلګونو پېښې او واقعې وخت په وخت د قربانيانو، رسنيو، بې پرې څېړونکو، نړيوالو ادارو، او عامو خلکو له

لاړې رسوا شوي ، او د هغه پولیس له مخه د ملت د خدمت جعلي پرده پورته شوې ، چې د اشغال په سیوري کې رامنځه شوي رژیم په لمن کې روزل شوی ، او د مزدورو څېرو په دې سپیڅلي ملت د امنیت د ساتو نکي په نوم تپل شوی دی.

دغه وسله په غاړه ځواک چې په موټرو یې لیکل شوي (پولیس د ټولني خدمتګار ) په اصل کې د غربي عریا نیت په خدمت کې دی او نه یوازې دا چې د خپل ناروا زور له لارې د عفیفو مېرمنو د عفت ټیکري شکوي ، بلکې په خپلو لیکو کې هم له ورته بد اخلاقي څخه برخمن دي ، لکه چې شپږ میاشتې دمخه د کابل د اداري د ښځینه پولیسي ځواک دولس تنو ښځو د رویټرز خبري اژا نس سره په مرکه کې وویل چې د هغوی افسران پر هغوی جنسي تیري کوي ، او د جنسي کړاو لاندې یې نیسي.

دغه له الهي حکم باغي موجود ، له فطرته د یاغي غربیا نو په مرسته غره لنډغر د افغا نستان په مظلوم او بې وسه ملت را مسلط شوی ، او د عفت په لوټلو یې بوخت دي ، لکه چې د همدې جنسي هوس د لیو نیا نو له جملې دوه تنو د تېر میلادي کال د مئ د میاشتې په اته ویشتمه نېټه د کندز په ولایت کې پر یوې پېغلې تیری وکړ ، د دوه زره او دولسم میلادي کال د جولای د میاشتې په څلورمه نېټه د زابل ولایت د مرکز کلات له ښاره رسنیو ته د پولیسو لخوا پر هلکا نو د جنسي تیري ویډیو واستول شوه ، د روان میلادي کال د مارچ د میاشتې په دیارلسمه نېټه د سرپل ولایت د بلخاب په ولسوالی کې د استخباراتو د پولیسو یو افسر یوه شپاړس کلنه نجلی د خپل جنسي هوس په غشي ښکار کړه ، د دوه زره او دولسم میلادي کال د مئ د میاشتې په اته ویشتمه نېټه د همدې وحشیا نو له منځه یو یې له مسمومولو وروسته د یوې پاکلمنې پېغلې عفت لوټ کړ.

هغه رژیم چې دغو (پولیسو ) ته د ملت د ساتنې لپاره معاشونه ورکوي ، روزي یې ، وسلې او موټرې یې ورکړې ، او پرې نازیږي ، نه خود دغسې پېښو په وړا ندې کوم جدي عکس العمل وښود ، نه یې مجرمان او په پېښو کې ښکیل کسان بندیان او محاکمه کړل ، او نه یې پکې کوم بدلون رامنځته کړ ، اته میاشتې دمخه د کندز ولایت د خان اباد د ولسوالی څخه یوه څوارلس کلنه نجلی وتښتول شوه ، او دوه میاشتې وروسته د بغلان ولایت د نهرین په ولسوالی کې ومو ندل شوه چې د همدې ولسوالی د جنایي مدیر لخوا په مسلسله توګه تر جنسي تیري لاندې نیول شوې وه ، خو مجرم له شل ورځې بند تېرولو وروسته خوشې شو ، او د نجلی د کورنۍ ګواښلو ته یې لاس واچاوه.

د ملي او محلي پولیسو ، اربکیا نو ، او امنیتي شرکتونو د ساتونکو په نومونو وسله وال شوي کسان نه دا چې د ملت ساتنه نه کوي ، د امنیت د راوستلو لپاره قربا نۍ نه ورکوي ، د قا نون ماتوو نکي له منځه وړي ، بلکې په خپله په دغو کارو نو اخته دي ، همدوی دي چې د خلکو مالونه لوټوي ، ځمکې یې غصبوي ، شتنمۍ یې په زور ځیني اخلي ، بې ګناه خلک بندیا نوي ، وهي او وژني ، او د خپل هېوادوال پر عفت تېری کول موږ هاغه د شوریا نو پر اوږو د ناستو کمو نستا نو دورته بیایي ، او بیا راته د خپلمنځي شخړو توره دوره را په زړه کوي.

که د افغا نستان د عامو خلکو په حق کې د پولیسو سرغړو نې او د هغوی پر حقه حقوقو د تېري هره برخه راوسپړو ، و نو داسې حقایق به مو مخې ته راشي ، چې ا نسان یې په اوریدلو د شرم احساس کوي ، او تر سره کوونکی یې له لویه سره ا نسان نه بلل کیږي.

دغه کړ نې موږ ته زموږ د مبارزې او جهاد د حقا نیت دلایل دي ، او چوپو خلکو ته ښیي چې د ظلم په وړا ندې چوپتیا هم جرم او ظلم دی ، او هغه کسان چې پولیس او په اصطلاح د افغا نستان افغان امنیتي ځواک بې ګناه ، سپیڅلي او ملي ځواک بولي ، او مجاهدین د هغوی د وژلو او مخنیوي له امله د خپل هېوادوال په وړا ندې په جګړه تورنوي ، باید وپوهیږي چې په افغا نستان کې روان جهاد نه یوازې دا چې د کفر او د کفر د ګوډاګیا نو په وړا ندې دی ، بلکې جهادي لښکر د دغسې (فساد في الارض ) او ظلم په وړا ندې هم ټوپک غاړې ته اچولی ، او تر هغه وخته به سنګر نه پریږدي څو پورې چې له هېواده دغه د کفر په مټو واکمن شوي د واک له ګدۍ راغورځول شوي نه وي.

# پر مسلمه امت د مجاهدو اسیرا نو حقوق



**عبدالستار حنفي**

باطل هر وخت د حق د له منځه وړلو لپاره د نورو تکتیکونو تر څنګ له تبلیغاتو او د قتل و اسارت له تهدیدو څخه ډېر کار اخلي، د هر عصر د فرعونیانو په تاریخ که نظر واچولی شي د وخت د موسی په مقابل کې یې دا دوه شیطاني تکتیکونه خامخا کارولي. موسی علیه السلام چې کله الله جل جلاله د فرعون په لور ي ولېږه تر څو هغه ته د توحید بلنه ورکړي د دلایلو د تبادله کولو نه وروسته سمدستي فرعون په موسی علیه السلام پسې د سحر تبلیغات پیل کړل او هغه ته یې وویل که چېرته دې له ما پرته بل څوک په خدایی ومنلو او له خپل دې کار نه لاس په سر نه شوې نو بندي به شې (قال لئن اتخذت الها غیري لاجعلنك من المسجونین ) ( )

په نني عصر کې هم چې کله د حق او باطل تر منځ جګړه ونښتله، نو باطل سمدستي له خپلو دغو دوو میراثي تکتیکونو څخه کار واخیست. د مجاهدینو په ضد یې تبلیغات پیل او ویې ویل چې تروریستان د ژوند حق نه لري یا به وژل کېږي او یا به بندیان کېږي او د خپل شوم هدف د ترسره کولو لپاره یې په ټوله نړۍ کې د مجاهدینو ازادۍ غوښتونکو ځوانانو لپاره قسم قسم تعذیب خانې پټې او ښکاره جوړې کړې او د ظلم او وحشت خپرولو او د مسلمانانو د بې عزتۍ لپاره په افغانستان عراق او نورو ملکونو کې یې په دغه زندانونو کې په ډېره بې رحمۍ د مسلمانانو غیرتي بچیان په رنګارنګ ظلمونو وځورول، خو الحمدلله د ننګیالیو حوصله نه زنځیرونو ماته کړه او نه تعذیبونو، تردې چې د زندان له پنجرو ووتل او د شهادت جامونه یې په سنګر کې نوش کړل او ځینې یې لا تر اوسه د کفارو تر ظلمونو لاندې شپې سبا کړې او د مسلمه امت نه د امداد او نصرت هیله لري نو ای د نړۍ مسلمانانو ! آیا دغه مجاهدین چې د الله د دین د سرلوړۍ په خاطر د کفارو په پنجو کې اسیران دي پر مسلمه امت څه حق لري او که نه؟ راشئ چې د الله جل جلاله مقدس کتاب قران عظیم الشان وګورو چې په دې اړه څه فرمایي: (و ان استنصروکم في الدین فعلیکم النصر) ( ۱ )

ترجمه: او که طلب د امداد یې وکړ له تاسو په باره د دین کې (دې مظلومو مسلمانانو ) نو لازم دی پر تاسې امداد او نصرت له هغوی سره.

دغه آیت کریمه اګر چې د هغو مظلومو مؤمنانو په باره کې دی، چې ایمان یې راوړی وي او هجرت یې نه وي کړی، لکن بیا هم په مسلمانانو باندې په وخت د مظلومیت کې یې ورسره مدد کول په دین کې لازم او فرض دی نو هر کله چې د دغه مسلمانانو سره امداد کول لازم دي چې هجرت یې هم نه وي کړی، نو له بندیانو مسلمانانو سره خو په طریقه اولی سره امداد کول فرض او لازم دي. قال رسول الله صلی الله علیه وسلم "من فدی أسیراً منا بید العدو فأنا ذلك الأسیر ".( )

ترجمه: رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي چا چې یو اسیر د کفارو له لاسونو څخه خلاص کړو، نو دغه اسیر زه یم یعنې دا کار دومره ثواب لري لکه څوک چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له زندانه راخلاص کړي.

حضرت عمررضی الله عنه فرمایي دا چې زه یو مسلمان له کافرانو راخلاص کړم، دا له ټول جزیرة العربه ماته ډېره غوره ده.( )

له ابوموسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: بندي راخلاصوئ، وږي مړوئ او د ناروغ پوښتنه کوئ. ابن بطال رحمه الله د بخاري شارح د دې حدیث په شرحه کې لیکي، چې د

مسلمانانو بندیانو راخلاصول فرض کفایي دي او همدا د ټولو علماوو مسلك دی.
د اسیرو مجاهدینو د راخلاصولو په باره کې د فقهاوو اقوال:
د حنفي فقهاوو اقوال:
د سیر کبیر په شرح کې دي، چې د کفارو له لاسو څخه د مسلمانانو بندیانو راخلاصول فرض دي. ابن همام رحمه الله په ردمختار کې لیکي چې د مسلمان بندي په راخلاصولو کې ټول هغه مسلمانان مکلف دي، د مشرق وي او که د مغرب. امام سرخسي رحمه الله په مبسوط کې لیکي کوم مسلمان چې د کفارو په لاس بندي شو او هغوی یې د وژلو اراده وکړه، نو په هرهغه مسلمان چې د هغه له حاله خبر وي دا فرض ده چې دغه بندي فدیه په خپله ورکړي که چېرته یې وس وي او که وس یې نه وي، نو نور تاجران مسلمانان به ورباندې خبروي، ترڅو هغوی یې فدیه ورکړي.
د شافعي فقهاوو اقوال
امام نووي رحمه الله فرمایي، چې کله د اسلام دښمنان یو مسلمان یا دوه مسلمانان بندیان کړي، نو دا داسې ده لکه کفار چې د مسلمانانو ښارونه ونیسي، ځکه د مسلمان احترام له ځمکې څخه زیات دی، نو د هغه یوه یا دوه اسیرانو لپاره د خلاصون هلې ځلې کول واجب دي. په دې باره کې د شوافع نور هم ډېر اقوال شته دلته اختصاراً په دې اکتفا کوم
د مالکي فقهاوو اقوال:
اشهب او ابن نافع رحمه الله وایي چې له امام مالك رحمه الله نه پوښتنه وشوه، چې ایا په مسلمانانو د خپلو بندیانو فدیه ورکول فرض دي؟ هغه ورته جواب کې وویل هو، چې کله په هغوی باندې د خپلو بندیانو د راخلاصولو لپاره جهاد فرض دی، نو په مال راخلاصولو به پرې څنګه فرض نه وي؟
امام قرطبي رحمه الله د سورة بقرة (۸۵) ایت لاندې لیکي: زموږ علماوو دا فرمایلي چې د بندیانو فدیه ورکول واجب دي، تر دې چې له مسلمانانو سره یوه روپۍ هم پاتې نه شي، ځینو ویلي له دې ایت نه د بندیانو د راخلاصولو فرضیت رامعلوم شو.
د حنابله فقهاوو اقوال:
ابن قدامه حنبلي فرمایلي: کله چې د مسلمانانو بندیانو راخلاصول امکان لري، نو راخلاصول یې فرض دي، همدا د عمرابن عبدالعزیز رحمه الله او د اسحاق رحمه الله قول دی. ابن تیمیه رحمه الله په خپله فتاوی کې لیکي: د بندیانو راخلاصول له لویو فرایضو څخه دي او د وقف مال او د نور مال مصرفول په دې لار کې ډېر زیات ثواب لري.
ابن حزم ظاهري رحمه الله په دې د علماوو اجماع نقل کړې چې؛ که چېرته د مسلمان په خلاصولو کې کفارو روپۍ غوښتلې، نو په مسلمانانو فرض ده چې روپۍ ورکړي او دغه مسلمان بندي له بنده خلاص کړي.
مقصد دا دی چې هر مسلمان باندې لازم ده، چې د اسیرانو مجاهدینو غم وخوري، که مجاهدین دي، که علماء دي، که عوام، که تاجران دي، دا پر ټولو مسلمانانو د بندیانو حق دی. نن په زرګونو مجاهدین وروڼه خویندې د کفارو په زندانونو کې تر ظلمونو لاندې د یو معتصم چغې وهي، خو کاش چې په مسلمانانو حاکمانو کې غیرت وي.
پر مسلمانانو لازمه ده چې د مجاهدو بندیانو د راخلاصولو لپاره هلې ځلې وکړي، هغوی ته د تېښتې لارې برابرې کړي، د بندیانو د راخلاصولو لپاره خبرې اترې وکړي، د هغوی د پاره فدیه ورکړي او د بندیانو د راخلاصولو د پاره وسله واله مبارزه وکړي. لنډه دا چې له هرې لارې ممکنه وي د مجاهدو بندیانو په راخلاصولو کې باید غفلت ونه شي.
که چېرته له یوې لارې هم د بندیانو راخلاصول امکان نه درلود په داسې وخت کې باید الله تعالی ته متوجه شي الله تعالی ته زارۍ او فریادونه وشي. بندیانو ته ځانګړې دعاګانې وشي، ترڅو الله تعالی د هغوی د خلاصون لپاره اسباب برابر کړي ځکه دعاء د مؤمن داسې اسلحه ده چې د ریموټونو نړۍ یې هم له مقابلې عاجزه ده.
الله رب العالمین ته سوال کوو چې د نړۍ په کوټ کوټ کې چې څومره مجاهدین د کافرانو یا د کافرانو د غلامانو په زندانونو کې د مظلومیت شپې سبا کوي په خیر او عافیت سره خلاص کړي.

## خالص بابا او زرقاوي

شمعون

زمونږ اهونه په اوس څه وکاندي
وړي وړي سلګي که زړه وکاندي
ستاسو په څير کوثرته تللي نشي
که سترګي هر څومره اوبه وکاندي

ستاسو په وينو خوشبوداره د نيا
رانه چا واخيسته دين داره د نيا
په کي لوغړيږوتول ککړ پکړ شو
راته يي پريښوده مرداره د نيا

يوپه جنت مين سپين ږيري زمونږ
بل تقوي مين تورږيري زمونږ
زمونږ غيرت نه خفه شوي لاړل
تاسوته درغلو ملګري زمونږ

دلته ي ستاسو په لارپريښول پلونه
دلته يي په تکسورداړپريښول پلونه
چاته يي سجدي ونکړي نيغ ولاړو
دفدايانو سرداړپريښول پلونه

يوبه په خپ غځ پري کول غځونه
بل به پري وکړل سخت مرګي وارونه
اوس يي صليب سره جهاد وکړلو
مخکي مات کړي وځيځ لورونه

ددوي نه پاتي بيرغونه ي اوس مونږ سره دي
په سره توري ډالونه يي اوس مونږ سره دي
په مخ روان يو روستوشوي نه يو
دجګړي ګرم سنګرونه يي اوس مونږ سره دي

مونږ دخالص او زرقاوي په لاره
دابن قاسم او ابدالي په لاره
درځومزل وهو منزل ته رسو
دايوبي او غزنوي په لاره

نوراته کتارشي راته سم ودريږي
دجنت غاړه کي يودم ودريږي
داسي شيبه په تاسو نه راځي نور
چي استقبال نه به بي غم ودريږي

## مفتون غرق پرق

ږانده خو نه يو په اغزوګلونه نه بدلوو
موږ په نيمګړي خوشحالئ غمونه نه بدلوو

مونږ غافل نه يو موږ زهر او شات ښه پيژنو
په خنداګانو دا خواږه دردونه نه بدلوو

کيداي شي وخت دچا په لاس راته سزاوي راکړي
خو په سرزورو نظريو فکرونه نه بدلوو

زړونه له زړونو بدلوو خو په سپيڅلو زړونو
خو حقيقت کي له مداره زړونه نه بدلوو

دقسما قسم سيلابونو غيږ کي ژوند تيروو
لکه دخوړ کاني يو سپين رنګونه نه بدلوو

نور به هم وځوريږو نور به هم حالات بدل شي
خو دا جنګي او جهادي خويونه نه بدلوو

مونږه درب په مرسته هر وخت بدلوو وختونه
خو له وختونو سره هر وخت ځانونه نه بدلوو

مجاهد و ، مجاهد يو ، او مجاهد به اوسو
شان او نشان ساتو او چت نومونه نه بدلوو

په غفلت نه ، موږ په غيرت او سادګئ مين يو
په ټول جهان دا نازولي غرونه نه بدلوو

سره او سپين پيژنو خو سپيني او ښکي هم پيژنو
په تشوکانو قيمتي لالونه نه بدلوو

"مفتونه" موږ په ابدي مست ژوندانه مين يو
په دې نيمګړي ژوند ، ژوندي مرګونه نه بدلوو

# دا نفال او التوبه سورتو نو اهم مضامين او ارشادات (التوبة)

مفتي ابو عامر صاحبزاده

د قتال په باب کې د دې سورت اهميت له دې معلومېږي، چې موضوع يې "قتال" او "جهاد في سبيل الله" ده او په دې اړه دومره قاطع او جدي ارشادات لري، چې دومره به بل سورة نه وي. شپږ کرت يې صراحتا امر بالقتال کړی او د قتال څوارلس علتونه يې ذکر کړي او د قتال د څلورو موانعو ځوابونه يې کړي. له مشرکينو سربېره يې د اهل کتابو پر ضد هم د قتال حکم کړی او د منافقينو هغه مواصفات يې بې شمېره ذکر کړي، چې د قتال د فرضيت په وخت کې راښکاره کېږي، نو معلومه شوه چې په دې باب کې دا سورة ډېر صفا او واضح دی.

د دې سورة اهم مضامين موږ په اوو بحثونو وېشو:

۱- د دې سورة واقعات او غزوات.

۲- د مشرکينو اقسام او د هر يو حکم

۳- د جهاد احکام.

٤- د مشرکينو مواصفات چې دې ته د قتال علتونه هم وايي.

۵- د اهل کتابو پر ضد قتال، سره له "اسباب القتال".

٦- د منافقينو مواصفات.

۷- د کاملو مؤمنانو مواصفات.

لومړی بحث: واقعات او غزوات

په دې سورت کې غزوه حنين، غزوه تبوك او ضمناً د هجرة المصطفى صلى الله عليه وسلم ذکر دی، تر ټولو لومړی د حنين غزا را اخلو.

دا غزوة د دې سورة په پنځه ويشت، شپږويشت، اووه ويشت ايتونو کې ذکر دی. د هرايت مقصد به وروسته راشي. غزوة حنين ته "غزوة اوطاس" او "غزوة هوازن" هم وايي.

حنين په اصل کې د مکې مکرمې او طايف په مينځ کې د يو ځای نوم دی، چې تقريباً څه د پاسه لس ميلو په فاصله له مکې مکرمې نه عرفات طرف ته واقع دی او دا ځای د يو سړي په نوم باندې مسمى شوی، د هغه نوم حنين بن قابثة بن مهلاييل و(۱).

۱- فتح الباري، د ابن حجر، ج ۸، ۲۱ مخ احياء التراث العربي چاپ.

د غزوة حنین تاریخي شالید:
کله چې مکه مکرمه په اتمه هجري کې فتح شوه، د عربو یوه مشهوره او بهادره قبیله چې سخت جنګیالي او غښي ویشتونکي یې درلودل او مالداره هم وه او شاخونه یې هم پراخه پراته وو، له مکې نه تر طایف پورې رسېدل، د دې قبیلې نوم هوازن و، د طایف اوسېدونکې قبیله بنو ثقیف هم د دې قبیلې شاخ و.
د هوازن قبیلې ټول افراد راجمع شول او دا یې سره وویل، چې د مکې مکرمې فتحې نه وروسته مسلمانانو پوره قوة حاصل کړی، کېدای شي پر موږ حمله وکړي، نو دا چې دوی پر موږ حمله کوي، باید موږ ورباندې ورمخکې شو.
د دې قبیلې او حرکت مشري مالك بن عوف کوله، روسته بیا مسلمان شو او د ثقیف قبیلې مشري عبدیالیل بن عمرو کوله.
ټول په جنګ کولو متفق شول بې له دوه قبیلو څخه چې یوه بنو کعب او بله بنو کلاب وه، دوی ورته وویل: که د مشرق نه تر مغرب پورې ټول خلك هم د پیغمبر علیه السلام خلاف راجمع شي، بیا به هم دا پیغمبر علیه السلام ورباندې غالب کیږي، نو موږ الله تعالی سره جنګ نه شو کولای.
له دوی پرته نور ټول سره متحد شول. هغه قبایل چې له هوازن سره یې په جنګ کې اتفاق کړی و، دا دي: هوازن، مضر، جشم، سعدبن بکر او څه لږ کسان د هلال قبیلې هم وو.
د ټولو تعداد کې اختلاف دی: ۱- دېرش زره. ۲- څلورویشت زره، دا قول د حافظ ابن حجر دی. ۳ - څلور زره. د دې ټولو اقوال تطبیق: څلور زره جنګیالي وو او دېرش زره او یا څلورویشت زره، ماشومان، زنانه او بوډاګانو سره ټول شمېر و.
مالك بن عوف د جنګ په تکتیکونو ډېر پوه و او د دې مهارت په بناء یې ټول قوم نه د ماشومانو، زنانه و او مالونو د راویستلو غوښتنه وکړه، دا په دې خاطر چې دوی تېښته ونه کړي، دا به په دوی کې زنځیرونه شي، هسې هم دا قوم سخت غښي ویشتونکی و او په جنګ کې قوي و، اهل وعیال او مالونو راویستلو سره به دوی په میدان کې نور هم کلك شي.
کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوی د دې ناکاره او خطرناکو ارادو نه خبر شو، نو د دوی د مقابلې لپاره یې سمدستي ځان تیار کړ. په مکه مکرمه یې امیر عتاب بن اسید رضی الله عنه مقرر کړ او معاذبن جبل رضی الله عنه یې هم ورسره د اسلامي تعلیماتو د ښودلو لپاره همکار وکرځاوه.
د مکې له مشرکینو څخه یې هم سامان او اسلحې وغوښتلې، په دوی کې صفوان بن امیه هم داخل و، نبي علیه السلام ترېنه څه د جنګ سامان وغوښت، ده ورته وویل: دا له موږه په زور او غصب اخلې؟ نبي علیه السلام ورته وفرمایل: "بل عارية وهي مضمونة حتى نؤديها لك". معنی دا ورنه امانتي غواړم او بېرته سپارل یې هم زما ذمه واري ده.
صفوان د دې خبرې په اورېدلو سره سل زغرې ورکړې او نوفل بن حارث هم ورته درې زره نېزې ورکړې، چې دا هم دې وخت پورې مشرك و.
پیغمبر علیه السلام هم له څوارلس زره صحابه کرامو سره د هوازن په لوري رهي شو، دولس زره د مکې مکرمې فتح کې شریکان مهاجرین او انصار وو او دوه زره هغه کسان چې د مکې د فتح په ورځ مسلمانان شوي وو، دوی ته به یې "طلقاء" ویل(۱ ). د شوال (ورو‌کی اختر میاشت ) په شپږم، د شنبې په ورځ پیغمبر علیه السلام د دې غزا لپاره ووت او صحابه کرامو ته یې وفرمایل: سبا به په خیف بني کنانه کې قیام او پړاو اچوو، دا هغه ځای دی چې د مکې مشرکینو د مسلمانانو پر خلاف د مقاطعې پرېکړه لیك لیکلی و.
کله چې حنین ته ورسېدل، سهیل بن حنظله رضی الله عنه راغی او ویې ویل: ای د الله رسوله یو سړی د دښمن له طرفه په آس سور راغی، هغه وایي: د هوازن قبیلې ټول خلك سازوسامان او اهل وعیال سره جنګ ته راغلي، نبي علیه السلام چې دا خبره واورېدله، تبسم یې وکړ، ویې فرمایل: دا ټول سامانونه د مسلمانانو لپاره غنیمت دی او د دوی لاس ته به پرېوځي،

۱ - کله چې دوی مسلمانان شول پیغمبر علیه السلام ورته وویل: اذهبوا انتم الطلقاء ! لاړشئ تاسې ازاد یاست. هیڅ ملامتیا پر تاسو نه شته.

پیغمبر علیه السلام د هوازن لښکر د احوالو معلوملو لپاره عبدالله بن ابي حدرد ور ولېږلو، هغه هلته دوه ورځې تېرې کړې، د هغوی مشر (مالك بن عوف) ته یې ځان ورسولو او د هغه خبرې یې واورېدلې، چې خپل لښکر ته یې ویل: محمدصلی الله علیه وسلم تر اوسه پورې جنګي خلکو سره نه دی مخامخ شوی، د مکې مشرکین (قریش) په جنګ نه پوهېدل، د دوی په وهلو دا دوکه شوي اوس به ده ته معلومه شي چې جنګ خلك څنګه کوي؟ او بیا یې دا هم وویل: چې د سبا راختلو سره سم خپل ټول صفونه برابر کړئ او هر کس دې خپل اهل وعیال او مالونه شا ته کړي، د خپلو تورو تېکي مات کړئ او ټول به په یو وار د یو کس په څېرحمله وکړئ، ورې ورې ډلې یې د غونډیو د پاسه کېنولې وې دا د دوی سخت جنګي مهارت او قوي تیاری و.

بل طرفته مسلمانان د نورو غزواتو په پرتله زیات هم وو او اسلحې یې هم زیاتې وې، نو د ځینو صحابه کرامو له خولې داسې الفاظ ووتل: "لن نغلب الیوم عن قلة" یعنې نن به د کموالي له امله مغلوب نه شو. تفسیر بغوي دې ایت لاندې ددې صحابي نوم سلمة بن وقش ښودلی او ځینو یې سلمة بن سلام ښودلی دی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې خبره خفه شو او الله تعالی ته هم دا خبره خوښه نه شوه، څکه په دې خبره کې په خپل قوت اعتماد ښکارېده، نو همدا وجه شوه چې کله دښمن د خپل جنګي ترتیب او قرار مطابق یودم د سبا په تیاره کې حمله وکړه او د غره په غاړه یې چې کومې ورې ورې ډلې کېنولې وې، هغوی هم راکوز شول او جنګ یې له هر طرفه شروع کړ، نو په صحابه کرامو کې شکست خپور شو او پښې یې وښویېدلې، جنګ یې دومره سخت شروع کړ، چې رڼا میدان داسې ګرد وغبار کې پټ شولکه د تورې شپې تیاره، هیڅ هم نه ښکارېدل، صرف درې سوه یا سل یا له دې نه هم کم صحابه په میدان پاتې شول. علامه الوسي دې ځای کې د لسو صحابه کرامو نومونه هم ذکر کړي، چې میدان کې کلك ولاړ وو: ابوبکر، عمر، عثمان، علي، عباس، عبدالله ابن عباس، فضل بن عباس، ابوسفیان ابن الحارث...رضي الله عنهم او همدارنګه پیغمبر علیه السلام په میدان په خپله قچره ولاړ و او د دښمن په لوري ورتلو، ابوسفیان بن حارث یې د قچرې واکې نیولې وو او عباس رضي الله عنه ته یې وفرمایل: خلکو باندې غږ وکړه، چې: راتاو شئ ! ای هغه کسانو چې د جهاد بیعت مو د ونې لاندې کړی و ! (اصحاب الشجرة) ای د سورة بقرة خاوندانو ! ای د انصارو ټولیه ! راوګرځېږئ ! پیغمبر علیه السلام دلته دی ! (د عباس رضی الله عنه غږ ډېر جګ و، نو په اوچت غږ یې دا اعلان وکړ) او پیغمبر علیه السلام به هم ویل: إلیّ عباد الله ! – ما طرف ته راوګرځېږئ د الله تعالی بندګانو !، ورسره به یې دا کلمات هم ویل: أنا النبي لا کذب - أنا ابن عبدالمطلب، معنی دا ده. لکه څنګه چې دا خبر رښتیا ده، چې زه د عبدالمطلب زوی او لمسی یم، همدارنګه دا هم رښتیا ده چې د الله تعالی له طرفه پیغمبر او نبي یم، دا کلمات شعرنه و، څکه دا یې په د شعرپه موخه نه دی ویلای، د شعر تعریف دا دی: کلام یقصد به الوزن والقافیة- شعر هغه کلام دی چې وزن او قافیه په کې د شاعر مقصد وي او دلته داسې نه ده.

دې سره پیغمبر علیه السلام یو موټی شګې راواخیستې او د کفارو پر مخ یې ور وشیندلې، ویې ویل: "شاهت الوجوه"، د دښمن مخونه دې بدرنګه وي (خېراوې دي)، هماغه و، چې دا شګې د ټولو مخونو کې الله تعالی ور واچولې.

صحابه کرام د عباس رضي الله عنه او د پیغمبر علیه السلام دې اوازونو اورېدلو سره یو دم بېرته راتاو شول او دوباره یې سخت جنګ شروع کړ. الله تعالی پرښتې هم د امداد لپاره راولېږلې، جنګ سخت شو، نبي علیه السلام وفرمایل: "حمی الوطیس"، جنګ ګرم شو، صحابه کرامو پوره شجاعت او مېړانې سره قتال وکړ، تر دې چې دښمن شکست او ماتې سره مخ شو او تېښتې ته مجبور شو.

اویا (۷۰) کسان مشران او سرداران یې ووژل شول، مالك بن عوف (مشر یې) هم خپل اهل وعیال، مال هر څه پرېښودل او د طایف یوه قلعه کې یې پناه واخسته او نور ټول قوم وتښتېده.

د دوی مالونه، اهل وعیال هر څه لکه څنګه چې پیغبر علیه السلام فرمایلي وو، ټول غنیمت شول، د دې غنیمت تفصیل داسې و:

شپږ زره ماشومان او زنانه قیدیان شول، څلورویشت اوښان او څلوېښت زره کډې او بیزې، ورسره څلور زره اوقیه سپین زر چې څلور منه (څلوېښت کیلویي) شاوخوا کېږي، دا ټول صحابه کرامو ته په غنیمت کې په لاس

ورغلل. دا غنایم راواخستل شول او تقسیم نه شول، په دې تمه که چېرته دوی مسلمانان راشي.
کله چې هوازن او ثقیف قبیلو ماتې وخوړله، د طایف یوه قوي قلعه کې یې ځانونه پټ کړل او دننه طرف نه به یې سخت غشي راویشتل، صحابه کرامو د پیغمبر علیه السلام نه د خېراوو (دعاءالشر) غوښتنه کوله، خو پیغمبر علیه السلام به ورته د هدایت دعاء کوله، له پنځلسو ورځو شاوخوا محاصرې نه وروسته پیغمبر علیه السلام صحابه کرامو سره مشوره وکړه او محاصره یې ماته کړله. "جعرّانه" مقام ته چې ورسېدل، هلته یې دا غنایم تقسیم کړل، چې ناڅاپه د هوازن قبیلې څوارلس سردارانو وفد د زُهَیر بن صرد په مشرۍ کې راحاضر شول او ویل یې چې موږ مسلمانان شوي یو او موږ ته زموږ اهل وعیال او اموال راکړه او پر موږ احسان وکړه.
پیغمبر علیه السلام ورته وفرمایل: ماسره د مسلمانانو دا ډله ده (د مالونو حقدار دي) او زه ربښتیا وینا خوښوم، دا را ته ووایئ، چې ښځې او بچي تاسو ته محبوب او ګران دي که مالونه؟ دوی ویل موږ د خپلو عزتونو او ابرو سره یو شی هم نه برابروو.
رسول صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته وفرمایل: دا خلك مسلمانان شوي، ما د دوی انتظار هم کړی و، خو اوس راغلل بیا مې دوی ته اختیار ورکړ، نو دوی د خپلو زنانه و او بچیو سره یو شی هم برابر نه کړ، نو چا سره چې د دوی اهل وعیال وي او د زړه په خوشحالی یې ورکوي، ور دې کړي او که څوك یې ځان سره ایسارول غواړي، بیا دې هم ورکړي، خو ده ته د دې په بدل کې شپږ برخې ورکوم، د هغې مال نه چې اول یې الله تعالی موږ ته راکړي.
ټولو په یو غږ سره وویل چې موږ به په خوشحالی او ستا لپاره هرڅه ورکوو، پیغمبر علیه السلام وفرمایل: ماته هر یو نه معلومېږي چې څوك په دې راضي دی او څوك خفه، نو تاسو خپلو کې سره مشوره وکړئ بیا دې د هرې قبیلې مشر ماته ستاسو رایه راوړي. ټولو بېرته دې خلکو ته په پوره خوشحالی د دوی اهل وعیال بېرته ورکړل.
د غزوة حنین د بیان نه پس اوس د دې درې ایتونو (پنځه ویشت، شپږویشت، اووه ویشت) لنډ مطلب:
زادالمعاد (۱) کې دا خبره ثابته شوې، چې صحابه کرامو کې اول شکست او ماتې خوره شوه او د هغې سبب په خپل کثرت او قوة باندې اعتماد او اعجاب و، نو سره د ډېروالي یې شا وګرځوله، الله تعالی د دوی ډېر والي ته ونه کتل او شکست یې وخوړ.
وروسته یې بېرته په صحابه کرامو کې د اطمئنان او سکینې نازلېدل ذکر کړي، ځکه د شکست په وجه دوی غیر مطمئن او بې قراره شوي وو او ځمکه وربانډې راتنګه شوې وه، خو بېرته اطمئنان د زړونو او کومك د ملایکو الله تعالی راولېږلو او کافرانو ته یې بیا پوره ماتې ورکړه.
بیا یې په اوه ویشتم مخ کې د دې قبیلو د مسلمانېدو طرف ته اشاره کړې ده، چې دوی له کفر نه توبه وویستله او مسلمانان راغلل، نو الله تعالی هم د دوی ګناهونه معاف کړل او توبه یې قبوله کړه او مهرباني یې وربانډې وکړه، چې د دوی اهل وعیال د مسلمانانو غنیمت و او د هغوی ملکیت و، خو بیا یې هم دوی ته بېرته ورکړل او د مسلمانانو زړونه یې وربانډې راضي او خوښ کړل، ځکه فرمایي: والله غفور رحیم.
دې ځای پورې د غزوې حال او د دې درې ایتونو حاصل ذکر شو، اوس ځینو هغو احکامو او مسایلو ته راځو چې له دې غزوې څخه راوځي:
۱- په خپل کثرت او قوة باندې اعتماد نه کول، چې دا سبب د ماتې ګرځي، بلکې اعتماد او تکیه په هر وخت کې قوي وي که کمزوری، ډېر وي او که کم وي صرف په یو الله تعالی باندې کول او کوم شی چې د ماتې سبب کېږي، هغې نه ځان ساتل. ورسره دا خبره هم معلومېږي، چې د جهاد په دوران کې چې کومه غلطي وشي او هغه بېرته د الله تعالی په توفیق اصلاح شي، نو نصرت الهي فوراً راکوزېږي.
په غزوة حنین کې د شکست سبب د ځینو صحابه کرامو وینا وه: "و لن نغلب الیوم عن قلة". دا وینا په اصل کې ممنوع او ناروا نه وه، ځکه حدیث شریف مفهوم همداسې دی: هغه لښکر چې شمېر یې (۱۲۰۰۰) ته ورسېږي، د قلة او کموالي له امله به مغلوب نه شي او په غزوة حنین کې د طلقاء نه علاوه هم صحابه کرام دومره تعداد کې وو، لیکن رسول الله صلی الله علیه وسلم هم په دې خبره خفه شو او الله تعالی ته هم دا خبره

۱- لعلامة ابن القیم جلد۲، مخ۲۱۰-۲۱۱، دار احیاء التراث العربي، بیروت.

خوښه نه شوه، د وجهې د اعجاب او د تکبر خوشحالی نه، چې د دښه اعتماد په کثرت او قوة معلومېده، نو معلومه شوه چې په جهاد کې په اسبابو اعتماد په کار نه دی.

۲- امام او امیر ته په کار دي، چې د دښمن د احوالو معلوموملو لپاره مسلمان د جاسوسی لپاره خفیه ور ولیږي، ترڅو د هغوی ټول حالات نزدې نه معلوم کړي او د هغې موافق بیا معامله ورسره وشي.

۳- کله چې امام او یا امیر د دښمن د غلطو او ناکارو ارادو نه خبر شي او په خپل لښکر کې طاقت هم ویني باید سمدستي ځان تیار کړي او مقابلې ته وروځي انتظار او تاخیر به نه کوي، هسې نه چې هغوی ناڅاپي رامخکې شي چې بیا به لوی نقصان او تاوان کې واقع شي، لکه څنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هوازن او ثقیف قبیلو د ارادو نه خبر شو، سمدستي ورپسې ورغی او کامیابی سره ترېنه راستون شو.

٤- د کفارو په مالونو کې هم عدل او انصاف په کار دی، لکه څنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د صفوان په مال کې عدل او انصاف وکړ. له صفوان نه پیغمبر علیه السلام عاریة نېزې اخیستې وې او بېرته یې ورته ورکړې، سره له دې چې په دې وخت کې صفوان کافر او مشرك و او هم پیغمبر علیه السلام غالب او قوي و، په زور او قوة یې هم ترېنه اخستی شوې، خو انصاف یې ورسره وکړ، نو معلومه شوه چې هر چا سره د عدل او انصاف معامله په کار ده، اګر که دښمن دې هم وي.

۵- له فتح او کامیابۍ وروسته هم له دښمن څخه لاس ته راغلو غنیمتونو په تقسیم کې تاخیر جایز دی او د دښمن د مسلمانېدو انتظار هم جایز دی، که مسلمان شي بېرته هغوی ته د هغوی بندیان ورکول جایز دي، که د غنیمة له تقسیمه وروسته مسلمان شي، نو بیا د چا سهم او حصه کې چې رسېدلي وي، د هغوی په اجازه او رضا باندې بېرته ورکولی شي.

٦- مسلمانانو ته د راحت او قوة او همدارنګه د غلبې په وخت کې د ضعف او سختۍ او تکلیف یاد په کار دی، چې هغه زوړ حالت هم هېر نه کړي، همدې یادښت لپاره پیغمبر علیه السلام صحابه کرامو ته وویل: سبا به موږ خیف بني کنانه کې قیام او پړاو اچوو، چې په کې قریشو د مسلمانانو پر خلاف مقاطعه اعلان کړه، د دې لپاره چې د سختۍ او تکلیف حالت مو هېر نه شي.

۷- د حقوقو په معامله کې د چا حق بغیر د هغه له رضا اخستل جایز نه دي او د هر ذي حق رایه ځانته معلومول په کار ده، په اجتماعي غږ باندې بسنه په کار نه ده، ځکه ډېر کرت یو ذي حق د نورو شرم نه یا د چا د ډار نه ظاهراً رضا مندي ښکاره کړي، خو په حقیقت کې هغه ناراضه او خفه وي، نو ځکه د هر چا رایه ځانته معلومول په کار ده. له همدې امله پیغمبر علیه السلام د دوی په دې یو غږ باندې اکتفاء ونه کړه، بلکې ورته یې وویل چې خپلو کې سره کینئ، بیا د هر خاندان او قبیلې مشر دې ما ته ستاسو د هر یو رایه او نظر راوړي.

۸- کفار که شکست هم وخوري، بیا یې له ایمانه مایوسي په کار نه ده، کېدای شي ایمان راوړي او د جهاد په برکت کافر توبه وباسي او مسلمان شي، لکه د هوازن قبیلې خلك چې راغلل او مسلمانان شول، دا د جهاد برکت او خیر و.

۹- له دې واقعې څخه موږ ته یوه ډېره مهمه مسئله راوځي، هغه د کافر په خلاف له کافره استعانه ده او له مشرکه استعارة اسلحه وغیره هم غوښتلی شي، لکه څنګه چې پیغمبر علیه السلام له صفوان بن امیه نه زغرې عاریة واخستې او هغه دې وخت پورې کافر و، له کفارو څخه کومك حاصلول، مالي یا بدني د نورو کفارو د مقابلې لپاره یا به بله اصطلاح د کافر د جنګ او د جهاد لپاره بل کافر ځان سره ملګری کولی شي او که نه؟ او یا یې څه مالي کومك اخستی شي؟ په دې مسئله کې لږ تفصیل دی. امام مالك رحمه الله فرمایي، استعانه له کفارو څخه جایز نه ده او نه به یې ځان سره جنګ ته بوځي، مګر که د خادم او تابع په حیث وي، بیا جایز ده.

امام شافعي او امام ابوحنیفه رحمهما الله فرمایي: دا استعانة جایز دی، کله چې کلمه د اسلام غالبه وي او کله که د کفر غلبه وي، بیا ترېنه استعانة مکروه دی(۱ ).

د لا ښه وضاحت لپاره له یو بل کتاب څخه د امامانو اقوال، دلایل او تطبیق را اخلو، چې خالص په همدې مسئله

۱-الجامع لاحکام القران للقرطبي.

ليکل شوي د کتاب نوم "الاستعانة بغير المسلمين " دی.
اول مذاهب د څلور امامانو:
د امام ابوحنيفه او د احنافو ټولو نظر دا دی، چې د جهاد د اصلاح او کاميابی په خاطر له کفارو څخه مدد غوښتی شي، خو په دوه شرطونو: ۱- د ضرورت او حاجت په وخت کې ۲- د غلبې او قوة په وخت کې
د امام مالك رحمه الله په نزد مطلقاً استعانة ممنوع دی. شوافع يې هم جايز وايي، خو په درې شرطونو:
۱- د دوی له خيانت څخه به مسلمانان او مجاهدين په امن وي.
۲- دوی له مسلمانانو کمزوري او ضعيف وي. ۳- دوی به په عقيده کې له هغو کفار څخه چې جنګ ورسره کوو مخالف وي.
له حنابله و څخه دواړه قسمه روايات ثابت دي، مشهور روايت يې د عدم جواز دی او له امام احمد رحمه الله څخه يو روايت د جواز هم ثابت دی، خو په وخت د ضرورت او حاجت کې.
دلايل:
د جواز دلايل: په حنين غزا کې له صفوان بن اميه څخه زغرې عارية اخستل شوې وې او دا واقعه خورا مشهوره ده، مخکې مو هم ذکر کړه( ۱ ).
۲- د احد په غزا کې هم پيغمبر عليه السلام د بنو نضير يهودو ته ورغلی و، اخر کې يې بيا ورته وفرمايل: يا به زموږ ملګرتيا کې راسره قتال کوئ او يا به اسلحه عارية راکوئ( ۲ ) .
د منع دلايل او روايات:
۱- د عايشة رضی الله عنها روايت دی: پيغمبر عليه السلام چې کله بدر ته ووتلو، بحرة الوبرة نوم ځای ته چې ورسېده، يو کس ورسره شو چې شجاعت او زړورتيا يې مشهوره وه، صحابه کرام خوشحاله شول، پيغمبر عليه السلام ته يې وويل: زه دې لپاره راغلم چې ستا ملګرتيا وکړم او تا سره شم، پيغمبر عليه السلام ورته وويل: مؤمن يې؟ هغه وويل: نه. پيغمبر عليه السلام ورته وويل: ځه لاړ شه، زه له مشرکه کومك نه غواړم، بيا هم هغه ورپسې و، تر دې چې په درېيم ځل يې ورته وويل: چې په الله تعالی او په رسول يې ايمان لرې؟ هغه وويل هو (مسلمان شو ) ، بس اوس راځه !
۲- د ابو حميد الساعدرضي الله عنه روايت دی: پيغمبر عليه السلام يوې غزوې ته ووتلو، يو کتيبه او ټولګی يې وليدلو، پوښتنه يې وکړه چې دا څوك دي؟ صحابه کرامو ورته وويل: دا بنو قينقاع دي، د عبدالله بن سلام رضي الله عنه قوم دی، ويې فرمايل: اسلام يې راوړی؟ دوی وويل: نه، پيغمبر عليه السلام وويل: دوی ته ووايئ، چې بېرته وګرځېږئ، موږ له مشرکانو کومك نه غواړو. بل روايت دی: فإنالا نستعين بالمشرکين علی المشرکين. د يوې ډلې د مشرکانو پر خلاف د بلې ډلې نه موږ کومك نه غواړو.
هرې ډلې د خپل نظرد تقويې لپاره د بل جانب له دلايلو توجيهات او جوابات کړي يا په نسخ يا ضعف يا په نورو وجو سره، خو په دې ټولو کې بهترين تطبيق چې صاحب الکتاب کړی او ټول روايات يې جمع کېږي، خو د منع روايات په لاندې صورتونو حمل کيږي:
۱ - د عدم حاجت په وخت کې دی.
۲- ښکاره مصلحت چې اعانة رد شي يا ادبا يا اميد ترېنه د مسلمانېدو وي.
۳- کله چې کفار قوي وي او د هغوی نه خطره هم وي.
٤- کله چې دا کفار مشهور وي په استهزاء بالدين او سخت تکليف رسوونکي وي مسلمانانو لره
د جواز دلايل به حمل وي په وخت د حاجت او ضرورت باندې او دا به هغه کفار وي، چې مسلمانانو ته ترېنه ضرر او اذيت نه وي رسېدلای او خيانت به هم ترېنه د مسلمانانو په خلاف نه وي شوی او ورسره دا خبره هم ده، چې دا کفار به له مسلمانانو څخه کمزوري وي( ۳ ).

۱- ابوداود، کتاب البيوع، باب تضمين العارية.
۲- مشکل الاثار للطحاوي جلد ۳/ ۲۴۰.
۳- الاستعانة بغير المسلمين: ۲۶۹.

۱۰- یوه بله فقهي مسئله هم د دې واقعې نه د عاریة په اړه راپیدا کېږي:
زموږ د احنافو مسلك دا دی، چې عاریة په شان د امانت دی، په خپله هلاکېدلو کې ضمنان او تاوان نه لري او قصداً هلاکولو (استهلاك) کې ضمان او تاوان لري. د کنزالدقایق شرح، البحرالرایق هم داسې لیکي: " ولو هلکت بلا تعد لا یضمن "(۱) یعنې که عاریة بغیر د تعدي نه په خپله هلاك شو، تاوان یې نه شته.
شوافع او حنابله وایي: عاریة مضمون بالتلف ده. یعنې که په خپله بغیر د تعدی نه هم هلاك شي تاوان به یې لازم وي، په شان د مغصوب، کوم شی چې غصب شوی وي، د هغې په هر صورت کې تاوان او ضمان شته. همدارنګه عاریة هم یې. ی هلاك او استهلاك دواړو صورتونو کې تاوان لازم دی.
د احنافو او شوافعو تولو مستدل دا قول د پیغمبر علیه السلام دی، کله چې یې صفوان ته وویل: بل عاریة وهي مضمونة حتی نؤدیها لك. شوافع معنی کوي: د دې به تاوان درکوم، که هلاکه شوه. احناف وایي معنی دا ده: اضمن لك ردها. د بېرته سپارلو یې ضامن یم. لفظ د حدیث د دواړو معناکانو احتمال لري، لیکن د احنافو معنی له حدیث نه ډېره څرګنده او ظاهر ده، له دې وجهې نه علامه ابن القیم دا معنی په درې وجهو سره غوره کړې، بل روایت کې عاریة مؤداة ده. دا صریح ده چې مراد په مضمونة سره اداء ده.
۲- صفوان د هلاکېدو پوښتنه نه کوي، بلکې د غصب او په زوره اخیستلو پوښتنه کوي، ځکه پیغمبر علیه السلام هم ورته وویل چې غصب نه دی، بلکې دا عاریة دی، بېرته به یې درته سپارم.
۳- ضمان یې صفت د عاریة ګرځولی، که چېرته دلته ضمان د تلف مراد وي، نو دا ضمان به یې د بدل لپاره و، هر کله چې ضمان واقع شو، په ذات د عاریة او د هغې لپاره صنعة، شو معلومه شوه چې دا ضمان د اداء مراد دی، نه ضمان د تلف (۲).
نو دا تقریباً لس احکام او مسایل شول چې له دې غزا استنباطیږي.



۱- البحرالرایق جلد۷- ۲۸۱.
۲- زادالمعاد، جلد۲/ ۲۱۳.

فقهي درسونه

# د فقهې پیل او ارتقاء

لیکوال: ډاکتر محمود احمد غازي رحمه الله ژباړن: شفیع الله احمدزی

## پرله پسې پنځمه برخه

د اسلام په پیل کې چې فقهاوو د اسلامي فقهې احکام تر تیبول، نو حالات داسې و، چې کومه نوې مسئله به پېښېدله، فقهاوو به یې ځواب ورکاوو. د نمونې په ډول عبد الله بن مسعود رضي الله د قران پاك او حدیثو عالم و، چې هر چا ته به څه علمي مسئله ور پیښه شوه، نو له عبد الله بن مسعود رضي الله عنه به یې پوښتنه کوله، او هغه مبارك به یې ځواب ورکاو؛ عامو صحابه وو تل پوښتنې کولې او ده به ځواب ورکاو، همدا رنګه ورو ورو یې ټول اجتهادات او علمي کار و زیار را ټول کړای شو. د دې تر څنګ حضرت علي رضي الله ته به هم خلك د مسئلو د پوښتنې لپاره ور تلل او هغه مبارك به یې ځوابونه ورکول، چې بالاخره د هغه علمي خدمات هم راټول کړای شول. تابعینو د حضرت عمر، حضرت عایشة، حضرت انس بن مالك، د حضرت زید بن حارثه رضي الله عنهم علمي خدمات مرتب کړل او ورپسې د تابعینو اجتهادات راټلونکو مسلمانانو ته په لاس ورغلل چې بالاخره په کتابي شکل را ټول کړای شول. دا کار ټول په اولې پیړۍ کې پوره شو. صحابه کرامو چې له قران کریمه څه فهم اخیستی و، هغه یې تابعینو ته ورساو او تابعینو چې څه زده کړل او کوم احکام یې مرتب کړل، هغه یې تبع تابعینو ته ورسول؛ تبع تابعینو دا ټول اجتهادات خپلو شاګردانو ته ورسول، د تابعینو او تبع تابعینو زمانه چې راغله، نو هغوی بیلابیل کتابونه ولیکل، یعنې د قران پاك د تفسیر او احادیثو له ټولګو ځانګړي کتابونه جوړ شول چې لیکوالانو یې پکې تفصیلي اجتهادات او فقهي احکام لیکلي وو؛ په دوی کې تر ټولو لومړی کتاب چا لیکلی و؟ د دې ځواب به ډېر مشکل وي، ولې نن سبا په موجوده کتابونو کې تر ټولو پخوانی "کتاب المجموع" امام زید بن علي لیکلی و چې د امام حسین رضي الله عنه لمسي او د امام زین العابدین زوی و. د فقهې تر ټولو لمړی کتاب زید بن علي لیکلی و دغه عملي احکام چې نن سبا ورته فقه ویل کیږي. دا کتاب د اولې پیړۍ په اخر او د دوهمې پیړۍ په پیل کې لیکل شوی و، نن سبا زموږ سره د فقهې کوم مستقل مدون کتاب نه تر ستر ګو کیږي له یاد کتابه پرته موږ ته د امام ابو حنیفه رحمه الله د شاګردانو او د هغوی دمعاصرو فقهاوو کتابونه دي، امام مالك، امام اوزاعي او امام ابو یوسف رحمهم الله چې وروسته به یې یادونه وکړو، او د دوهمې پیړۍ له پیله چې اسلامي فتوحات ورځ تر بلې زیاتیدل او د اسلامي خلافت لمن پراخیده نو داسې مسئلې به پیښېدې چې ځواب به یې د

شریعت په رڼا کې اړین و، په داسې حالاتو کې داخطر ډېر زیات و چې د مسئلې د پېښېدو او د مستند عالم د نه موجودیت له امله څوك غلطې فیصلې وکړي او څوك کم علمه انسان ته ورشي او غلط ځواب ورکړي، دا هغه وخت و چې د اسلامي خلافت حدود له چینه تر هسپانیې پورې رسیدلي و د هسپانیې او فرانسې تر منځ د "لې پیرنې" په نوم د غرونو یوه لړۍ راځي؛ له دې حدودو نیولې، ټوله هسپانیا، نیم پرتګال ټوله شمالي افریقا ټول منځنی ختیز، افغانستان ټوله منځنی اسیا، ایران او د چین تر شمالي سرحداتو د اسلامي نړۍ لمن غزېدلې وه؛ نو دې وخت کې د دې خبرې امکانات ډېر زیات ول چې په یوه لرې پرته سیمه یا کوم ښار کې دې کومه فقهي مسئله پېښه شي او ځواب ورکوونکی شخص دې پوخ عالم او فقیه نه وي، یا به وي خو قوي عالم به نه وي یا به تکړه عالم وي، خو په دې مسئله کې به نه پوهیږي؛ نو شونې ده چې په داسې حال کې دې غلط ځواب ورکړي، او خلك دې له شریعته غلط فهم واخلي او د همدې غلط فهم پر اساس به عمل هم کوي نو په داسې حالاتو کې د اسلام ځینو فقهاوو اړتیا ولیده، چې د نویو مسئلو ځوابونه دې له پوره سوچ او دقته وروسته ورکړای شي، د دې پر ځای چې مورد کینو او د مسئلو د پیښېدو انتظار وکړو او بیا یې ځواب و وایو؛ ښه دا ده چې په ممکنه پېښېدونکو مسئلو سوچ وکړو او ځواب یې تیار کړو تر څو راتلونکې کې ترې خلك په اسانۍ ګټه پورته کړي، دا د فقهې هغه برخه ده چې تقدیري فقه ورته ویل کیږي. صحابه کرامو او تابعینو عموما دا کار نه خوښاوه د هغوی دا نه خوښېدل چې یوه مسئله دې پېښه نه وي او مورد دې ورته له ځانه فرضي ځواب و وایو؛ له همدې امله صحابوو او ډېری تابعینو دا کار نه دی کړی، مګر کله چې اړتیا ولیدل شوه نو تبع تابعینو او شاګردانو یې د دې کار لپاره خپلې زندګۍ وقف کړې. امام ابو حنیفه، امام شافعي، امام مالك، امام ابن جریر طبري، امام اوزاعي، سفیان ثوري او داسې نور لسګونه ستې وي چې د دې کار بوج یې پر سر اخیستی و او ددې ستر کار لپاره یې خپل ټول ژوند قربان کړی دی. دغو درنو ستو به په مسائلو سوچ کاو او احکام به یې ورته موندل او د همدغو مسائلو ټولګې به یې برابرولې؛ همدغه کار و زیار ته تقدیري فقه ویل کیږي. ویل کیږي چې امام اعظم رحمه الله کم له کمه د ۸۴ زره مسئلو په اړه سوچ او فکر کړی و او د هغو احکام یې مرتب کړي ول وروسته یې شاګردانو د امام صاحب د اصولو او قواعدو په رڼا کې شا و خوا پنځه لکه مسئلو په اړه سوچ کړی و او ځوابونه یې ورته موندلي ول. امام شافعي رحمه الله په اته ټوکه کې یوه دایرة المعارف لیکلې چې هر جلد یې دومره لوی دی چې د زرګونه مسئلو په اړه پکې بحث شوی او اتو واړو جلدونو د مسئلو یقیني شمېر خو راته نه دی معلوم، ولې دومره خبر یقیني ده چې په لکونو مسئلې پکې حل شوي دي. د ژوند د هر ډګر په اړه چې د امام شافعي رحمه الله ذهن ته کومه مسئله راغلې هغه مبارك به د قران و سنت په رڼا کې پرې سوچ کاو او ځواب یې ورته لیکه. د امام شافعي رحمه الله طریقه دا وه چې د قران په یو یو آیت به یې سوچ کاو، له خپلو شاګردانو سره به یې شریکاو او چې څه مسئله به ترې را وتله؛ هغه به یې لیکله، همدا رنګه به یې په هر حدیث هم سوچ و فکر کولو او چې څه حکم به ترې را وتلو، هغه به یې هم لیکه، امام شافعي رحمه الله ډېر کتابونه لیکلي، د یو ستر کتاب په شکل کې راټول شوي، چې "کتاب الأم" ورته ویل کیږي. دا لړۍ تر دوهمې هجري پېړۍ پورې همداسې روانه وه چې، په نتیجه کې یې داسې یوه علمي پانګه د مسلمانانو لاسته راغله چې د نړۍ په تاریخ کې یې ساری نه لیدل کیږي، دا دمسلمانانو د ټولنیز تفکیر نتیجه ده، په دې علمي کار کې کې لکونو نامتو ذهینو ستو برخه اخیستې، د لکونو بهترینو انسانانو بهترینې شپې ورځې پکې تېرې شوي دي. د اسلامي فقهې ترتیب او تدوین په هوا کې نه دی شوی، بلکې دا ټول کار د هرې ورځې مدني او حکومتي پېښېدونکو مسئلو، د قرآن او په رڼا کې ځواب شوي دي. په دې علمي کار و زیار کې د ټولو مسلمانانو تهذیبي، مدني، انتظامي او تجارتي اړتیاوو خیال ساتل شوی دی؛ ځکه چې د دې کار تراو د انساني ژوند له هر ډګر سره دی. د انسان په ژوند کې له ورځنی پېښدونکې پېښې نیولې د اسلامي تهذیب او تمدن، او اسلامي ثقافت کې هره ورځ پېښېدونکو مسئلې په اسلامي فقه په مکمله زیرکتیا څېړل شوي دي؛ ځکه نو هیڅوك هم دا نشي ویلای، چې اسلامي فقه دې یوه لحظه هم د کوم ځانګړي او شخصي نظر تر اغیز لاندې راغلې وي، بلکې دا یو عملي لارښود دی چې لکونو فقهاوو، د ملیاردونو مسلمانانو د لارښوونې لپاره شپه ورځ رسول. او

د اسلامي فقهې اساسي بنسټ قران کریم او سنت دی، چې له اخلاقو سره یې اساسي تړاو دی، د نړۍ د سیکولر (بې دینه) قوانینو په څېر غیر اخلاقي نظام نه د ی.دا نظام د اخلاقو په اړه بې طرفه نه دی، راتلونکي درسونو کې به په دې پوه شو، چې د اسلام اخلاقي تعلیماتو لارښوونو یو تر بله کلك او نه بېلېدونکی تړاو دی. د هر فقهي حکم اخلاقي او روحاني نتیجې بیان شوي دي. په قران کریم کې سلګونه داسې آیتونه شته چې، فقهي احکام پکې راغلي؛ ورسره یې اخلاقي او روحاني اثرات هم راغلي دي؛ "لعلکم تتقون" پردې حکم عمل کولو سره به په تاسې کې تقوا پیدا شي. "لعلکم تتذکرون" د دې هدایت په منلو به تاسې تل الله تعالی په یاد لرئ. "وفي القصاص حیاة" او په قصاص کې ستاسې لپاره ژوند دی. بل ځای کې الله تعالی فرمایي " کي لایکون دولة بین الأغنیاء منکم" همدا رنګه چې مال و دولت ستاسې د مالدارانو تر منځ نه تاویږي راتاویږي؛ له هر قانون سره یې نتیجه، اخلاقي ثمرات او روحاني برکات په نښه شوي دي؛ همدا رنګه په اسلامي فقه کې قانون، مذهبي لارښوونې، اخلاقي برکات او روحاني ثمرات ټول یو له بل سره تړلي دي، چې یو له بله نشي بیلېدای، په دې کې د انساني مزاج او رواني حالاتو دومره خیال ساتل شوی، چې هیڅ حکم او قانون یې د انساني طبیعت او انساني کرامت سره په ټکر کې نه دی. د علامه بدرالین عیني نوم به مو اوریدلی وي، ډېر ستر فقیه و د صحیح بخاري یوه شرحه "عمدة القاري" او د هدایة شرحه "البنایة" یې هم لیکلې، په البنایة کې یې لیکلي چې که څوك په سفر روان وي او اوبه ورسره نه وي او له بل ملګري سره یې وي؛ نو اوس سوال دا دی چې، له ملګري به د اوبو سوال کوي یا دې تیمم وکړي؟ د اسلام فقهاوو په دې اړه ډېر بحث کړی په یاد کتاب کې پرې لس دولس مخونو کې پر هم دې موضوع بحث شوی، ځینو فقهاوو ویلي چې شریعت انسان له سوال کولو منع کړی، ځکه چې دې کار سره د انسان کرامت او عزت ته زیان رسي؛ له همدې امله اسلامي شریعت د هیڅ کوم کار لپاره یو انسان بل انسان ته په لاس غزونې نه دی مجبور کړی، نو شریعت کې د دې خبرې پوره اجازه ده چې یو څوك د دې پرځای چې بل چا ته لاس ونیسي، ښه دا ده چې تیمم وکړي. علامه عیني دا خبره هم روښانه کړې چې که چا سره پیسې وي او دوهم ملګری یې اوبه پرې خرڅوي، نو دی کولای شي چې اوبه ترې په پیسو واخلي. له دې معلومیږي چې د اسلام فقهاوو د انساني مزاج او عواطفو څومره خیال ساتلی. په راتلونکي درسونو کې به په دې اړه نوره رڼا هم واچول شي. دا هغه اساسي ځانګړتیاوې دي چې په اسلامي فقه کې موندل کیږي. اسلامي فقه د خپلې پراختیا او ځانګړتیاوو له پلوه یوازې په انساني تاریخ نه، بلکې د اسلامي علومو او فنونو په تاریخ کې یو ځانګړی مقام لري او بې له کوم شکه د اسلام په باغ کې فقه تر ټولو د سر د کل حیثیت لري.

وآخر دعوانا ان الحمدلله رب العالمین.

سوال او ځواب

۱ـ ایا تقدیري فقه د اختلاف لامل نشوه؟ په دې اړه خو د نظر اختلاف هم کیدای شي

ځواب: په فقهي معاملاتو کې اختلاف څه بده خبر نه ده، اختلاف چې تر څو د شریعت په چوکاټ کې وي، څه بده خبر نه ده. هر عالم دا وواېي چې زما نظر صحیح دی د تېروتنې امکان لري او د بل فقیه فهم او پوهه ده، کیدای شي سمه او پر ځای وي، تر څو چې دا خبره وي، نو په فقهي اختلافاتو کې څه ستونزه نه ښکاري. له ازاد او مخلصانه نظر اختلاف سره په دین کې پوهه (تفقه) زیاتیږي. په صحابه کرامو کې هم د فقهي مسئلو په اړه د نظر اختلاف موجود و، چې مثالونه یې تاسې ته ښکاره دي. که دا اختلافي نظرونه دین یا دشریعت قایم مقام وګڼل شي؛ نو ډېرې ستونزې ترې ولاړېدای شي.

د یو فقیه رایه او نظر ډېر د احترام وړ دی، ولې اختلاف هم ورسره کیدای شي، د تېروتنې امکان هم لري او هغه څه چې له تېروتنې پاك او سل په سلو کې صحیح وي؛ یوازې د الله تعالی کلام او د رسول صلی الله علیه وسلم احادیث دي. له دې پرته د هر انسان په پوهه، بصیرت او اجتهاد کې د غلطۍ او تېر وتنې امکان شته؛ له همدې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي، چې که مجتهد صحیح نتیجې ته ورسید نو دوه اجره لري او که ونه ورسېد نو یو اجر خو یې په برخه دی. د دې خبرې موخه دا ده چې مخلصانه تېروتنه هم د الله تالی خوښه ده. د مجتهد تېروتنه دالله تعالی په نظر کې داسې ده لکه چې ستا یو کچنی زوی تازه په ګرځیدو راځي، او کله چې غورځي نو ته یې په منډه په غېږ کې را

را اخلې او مينه ورسره کوي. نو مجتهد هم د هغه ماشوم په څېر دی چې د خپل کم علم او عقل په مټ کوښښ کوي چې د الله تعالی احکام معلوم کړي؛ نو که په دې مخلصانه عمل کې خطا هم شي، الله تعالی ته يې دغه زيار خوښ دی او اجر يې ورکوي.

سوال

ستاسې له اخري مثاله داسې ښکاري، چې فقه خو کډه وډه او جرړې شی دی

ځواب: نه، نه. فقه جرړې شی او څه بد شی نه دی؛ بلکې د انساني ارتياوو د پوره کولو لپاره يو اړين شی دی. هر وخت چې پر شريعت عمل کېږي نو فقه يې احکام ترتيبوي، د دې احکامو د ترتيبولو لپاره د شريعت پر نصوصو کامله پوهه او بصيرت په کار دی. او وروسته يې تعبير او تشريح په کار ده؛ دېته فقه ويل کېږي، هره ورځ نوې نوې مسئلې پېښېږي او د دې نويو مسئلو حل د همدې فقهي اصولو په رڼا کې ممکن دی. که څوك له اولې ورځې دا هوډ وکړي چې، د شريعت په هر حکم به عمل کوي، او د ژوند په هر ډګر کې به د الله تعالی او دهغه د رسول صلی الله عليه وسلم پيروي کوي؛ نو پر شريعت به عمل کول ورته ډېر اسان ښکاري. او که و وايي چې، په شريعت عمل کول يو ستونزمن کار دی، او هره خبر د خپلو خواهشاتو په تله تلي، نو هر څه به ورته ستونزمن ښکاري. نړۍ دېته نه ګوري چې خپلې ستونزې يې څومره دي، خو تل د مسلمانانو کارونو ته ګوتې نيسي. له ننه څو کاله مخکې مې په اته نهه سوو مخونو کې کښل شوی يو ستر کتاب ولوست، چې دانګريزي پرتوکول اداب پکې ليکل شوي و، يو باب يې يوازې پر دې ليکلی و چې ميلمه به د ډوډۍ پر ميز څنګه کينوې؟لوښي او کاسې به څنګه ږدې؟ زموږ يو مشر دوست دی، د هر غربي کار ستاينه او د مسلمانانو پر هر کار نقد کوي، هغه به ويل چې مسلمانانو د فقه په نوم دين او ژوند دواړه سخت کړي دي، ما ورته ويل چې مسلمانانو به ژوند سخت کړی وي يا نه؛ خو انګريزانو خو ژوند له حده زيات ستونزمن کړی دی. مسلمانان خوراك پر څمکه کولای شي، او انګريزانو خو يوازې د ډوډۍ خوړلو په اړه سلګونه پاڼې کتابونه ليکلي دي، د هغوی پر کارونه نيوکه نه کېږي؛ ځکه چې د هغوی هر کار د ستاينې وړ ښکاري. د شريعت په کارونو کې فکر او تأمل کېږي، نو ځکه اسانه کار هم ستونزمن او جنجالي ښکاري. په فقه کې هيڅ شی سخت او جنجالي نه دی؛ تاسې د فقهې کوم کتاب را واخلی، پوه به شی چې فقه يو عقلي. او په يوه ښه علمي سيستم جوړ شوی فن دی. هغه چا چې فقه نه وي لوستې نو اسانه شی هم ورته سخت ښکاري، خو چې کله يې ولولي نو بيا انسان پوهيږي چې هر څه پکې ډېر اسان دي، تاسې درې څلورکاله د فقهې کتابونه ولولئ نو د فقهې په اصلي مغز به پوه شئ او چې څومره اسان او د انساني ژوند لپاره اړين علم دی.

سوال

ايا ځينې علماء اوس هم د فقهې نوی تدوين کوي؟

ځواب؛ د اسلامي فقهې نوی تدوين او بيا کتنه خو تل کېږي، هيڅ يو وخت داسې نه دی راغلی چې د فقهې تدوين او بيا کتنه revisionاو recodification دې پکې نه وي شوی؛ ځکه چې مسائل او حالات وخت پر وخت بدليږي نو د هرې زمانې فقها د خپل وخت مطابق پر مسئلو سوچ او فکر کوي او عامو خلکوته يې لارښوونه کوي. راتلونکی درس به ان شاءالله دا صول فقه په اړه وي، اصول فقه يو څه سخت مضمون دی او د فقهې تر ټولو مشکل مضامينو کې شمېرل کېږي، مګر زه به کوښښ کوم چې په اسانه طريقه يې وړاندې کړم.






له سهاره تر ماښامه خوراک، څښاک او کوروالي نه کولو ته روژه ویل کیږي. د لمونځ په څېر دا عبادت هم د ټولو پیغمبرانو په شریعتونو کې فرض و، څومره پخواني امتونه چې تېر شوي، د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د امت په څېر روژې یې نیولې، خو د روژو تعداد او وختونو کې یې توپیر و. نن سبا هم ټولو د دنیا ډېری مذهبونه په یو ډول روژې نیسي، که څه هم ځینو په کې له ځانه خبرې ځای کړي دي، چې د روژې خپل اصلي صورت یې له منځه تللی.

الله تعالی فرمایي: یَا اَیُّهَا الَّذینَ امَنُوا کُتِبَ عَلَیکُمُ الصِّیَامُ کَمَا کُتِبَ عَلَی الَّذینَ من قَبلِکُم لَعَلَّکُم تَتَّقُونَ. ژباړه: ای ایمان والو! پر تاسې روژه داسې فرض شوې، لکه څرنګه چې له تاسې مخکنیو امتونو باندې فرض شوې وه. له دې ایته معلومیږي، چې د الله تعالی له خوا څومره شریعتونه راغلي، یو هم د روژې له عبادته خالي نه و. روژه ولې فرض شوې؟ راځئ فکر وکړو، چې روژه کې کوم ځانګړی حکمت دی چې په هره زمانه کې پر خلکو فرض شوې.

### د ژوند مقصد دالله تعالی بندګي ده:

د اسلام یوازینی موخه دانسان ټول ژوند د الله عبادت کول دي. انسان عبد یعني بنده دی او بنده ګي یې عین فطرت دی. د همدې لپاره انسان باید په خپل خیال و عمل کې د یو ساعت لپاره ازاد او سر کش نه وي. ټول ژوند یې باید په دې سوچ و فکر کې وي، چې الله تعالی پر کوم شي رضا او پر کوم شي نارضا کیږي. همدا راز انسان باید هغه کارونه وکړي، چې الله تعالی پرې رضا کیږي او له هغو کارونو ځان وژغوري، چې الله تعالی پر خپه کیږي. انسان چې هر وخت دغه خبرې پر ځان عملي کړي، نو دالله تعالی د بنده ګۍ حق یې أدا کړ او دالله تعالی د دغې وینا "وما خلقت الجن و الانس الا لیعبدون" مصداق شو.

### عبادت د ژوند روزنه ده

د لمونځ، روژې، حج او زکات په نوم چې کوم عبادتونه پر موږ فرض شوي، مقصد یې د همدې ستر عبادت

لپاره زموږ تیاري دی، د دې عباداتو د فرض کېدو موخه دا نه ده، چې که موږ د ورځې پنځه وخته رکوع و سجده وکړه او په روژه کې مو دېرش ورځې له سهاره تر ماښامه لوږه تنده وزغمله او د مال داری په صورت کې مو زکات ورکړ او په ټول عمر کې مو یو ځل حج وکړ، نو موږ د الله تعالی حق ادا کړ او له بنده ګۍ خلاص شو؛ بلکې د دې عبادتونو د فرض کېدو حکمت دادی، چې په واسطه یې د الله تعالی د بنده ګانو روزنه وشي او ټول ژوند په همدې طریقه دالله تعالی په عبادت کې تېر کړي؛ همدغه مقصد ته په کتلو راځئ وګورو چې روژه انسان څرنګه دې ستر عبادت لپاره تیاروي.

## روژه یو پټ عبادت دی

له روژې پرته چې څومره عبادتونه دي، له یوې لارې خامخا ښکاره کېږي، د بېلګې په توګه: لمونځ کې سړی کښېنته، پورته کیږي، رکوع او سجده کوي هرڅوک یې ویني؛ حج کې له لکونو انسانانو سره یو ځای یو لوی سفر کوي، زکات هم لږ تر لږه یو کس ورکوي، بل یې اخلي. دغه ټول عبادات که کوو یا نه، حال یې نورو انسانانو ته معلومېږي. د دې پر خلاف روژه یو داسې عبادت دی، چې یوازې د الله تعالی او بنده تر منځ ځانګړی راز وي، که یوانسان د خلکو مخکې پېشلمي وکړي او تر روژه ماتې په ظاهره هېڅ ونه خوري، ولې له خلکو پټ اوبه یا څه وخوري؛ له الله تعالی پرته هېڅوک نه پرې خبرېږي، ټول خلک به دا ګومان کوي چې دی روژه دی، مګر په حقیقت کې به یې روژه نه وي.

## روژه د قوي ایمان نښه ده

راځئ د روژې پر دې حیثیت فکر وکړو، چې یو انسان رښتیا روژه نیسي او په پټه څه خوراک وڅښاک پکې نه کوي، په سخته ګرمۍ کې هم وږی، تږی ګرځي او په هېڅ حال خوراک او څښاک ته زړه نه ښه کوي؛ نو د دغه انسان پر دې څومره قوي ایمان دی، چې الله تعالی عالم الغیب دی، څومره قوي ایمان یې دی، چې که هېڅوک مې ونه ویني، مګر له الله تعالی هېڅکله هم نه شم پټېدای. په زړه کې یې دالله تعالی څومره ډار دی، چې هر رنګه سخت تکلیف ګالي، خو د الله تعالی له وېرې هېڅ داسې کار نه کوي چې روژه پرې ماتېږي، د اخرت په جزا و سزا یې څومره قوي یقین دی، چې ټوله میاشت نژدې دېرې سوه ساعته روژه نیسي او په دغه وخت کې د اخرت په اړه یې په زړه کې یوه زره شک هم نه پیدا کېږي. که روژه دار دا فکر وکړي، چې اخرت به وي کنه او ثواب و عذاب پکې وي کنه؛ نو هېڅکله به هم دی خپله روژه پوره نه کړي.

## یوه میاشت پرله پسې تمرین

الله تعالی هر کال یوه میاشت پر له پسې د مسلمان ایمان ازمویي او چې له دې ازمېښته څومره هسکه غاړه راوځي، هغومره یې ایمان مضبوط وي. لکه دا چې د امتحان، امتحان وي. موږ او تاسې چې کله یو چا سره څه امانت ږدو نو اول یې دایمانداری جاج اخلو؛ که په دغه امتحان کې بریالی شو، نو موږ او تاسې ورسره خپل امانت ږدو او د ډېرو اماتتونو جوګه یې بولو. همدارنګه الله تعالی ټوله میاشت هره ورځ له څوارلس تر شپاړسو ساعتونو پورې له موږ امتحان اخلي، چې څوک پکې کامیاب شي، نوره وړتیا پکې هم پیدا کېږي، چې له الله تعالی وووېرېږه او نور ګناهونه هم پرېږده او الله تعالی په حقه عالم الغیب وګڼه او په پټه او ښکاره د الله تعالی قانون مه ماتوه، تل د قیامت هغه ستره او خطرناکه ورځ په یاد لره چې هر څه به را ښکاره شي او الله تعالی به د هرې نېکۍ بدله پر نېکۍ ورکوي او د بدۍ بدله پر بدۍ. د دې ایت مطلب همدغه دی چې الله تعالی فرمايي: ای ایمان والو! پر تاسې روژه داسې فرض شوې لکه څرنګه چې له تاسې مخکنیو امتونوباندې فرض شوې وه.

## د الله تعالی د بنده ګۍ اوږد تمرین

د روژې یوه ځانګړنه دا هم ده چې تر ډېره وخته د شریعت د احکامو پرله پسې پیروي پکې ده، د لمونځ وخت

له څو شپېو ډېر نه وي، د زکات د اداکولو وخت هم ټول کال کې یو وار راځي، حج کې که څه هم وخت ډېر تېرېږي، ولې په ټول عمر کې یو ځل راځي او هغه هم د ټولو لپاره نه. د دې ټولو پر خلاف، روژه هر کال پوره یوه میاشت د اسلامي شریعت د اتباع تمرین درباندې کوي، سهار پېشلمي ته جګ شه په پلانې وخت خوراک، څښاک بند کړه د ورځې پلانی کار کوه، پلانی مه کوه، ماښام په ځانګړي وخت روژه ماته کړه، بیا ډوډۍ وخوره، ورپسې تراویح وکړه. دغسې هر کال ټوله میاشت له سهاره تر ماښامه او له ماښامه تر سهاره دپوځیانو په څېر اوږد تمرین کوې او بیا یې یوولس میاشت پرېږدي، چې دغه یوه میاشت کې یې څومره تربیه حاصله کړې وي، اغېزې یې پرې را ښکاره شي او چې څه کمی پاتې وي، د بل کال په تمرین کې یې پوره کړي.

## د روژني لپاره ځانګړی ټولنیز چاپېریال

د دغسې تربیې لپاره یو یو نفر جلا جلا تیارول مناسب کار نه دی، موږ او تاسې پوځ کې وینو چې هر کس ته جلا جلا زده کړه نه ورکوي، بلکې ټول پوځ یو ځای د خپل قومندان امرونه پر ځای کوي، چې یو ښه ټولی ترې جوړ شي او له دې سره سره دوی د یو بل تربیه کې همکاري وکړي، یعنې چې د یو نفر په تربیه کې څه ستونزه پاتې وي دویم یې ور پوره کړي او.... همداراز په اسلام کې هم د رمضان میاشت د روژې د عبادت لپاره ځانګړې شوې ده او مسلمانانو ته امر شوی، چې ټول دې په یو وخت روژه ونیسي. دغه حکم له انفرادي عبادته اجتماعي عبادت جوړ کړی لکه څنګه چې د یو عدد ته په لکونو کې ضرب ورکړو، نو د لکونو عدد ترې جوړېږي، همدارنګه د یو انسان د روژې ډېرې اخلاقي او روحاني ګټې وي د لکونو ملیاردونو انسانانو روژې چې سره یو ځای شي څو، ملیارده ترې جوړېږي. رمضان د روژې ټوله میاشت د نېکیو او پرهېزګارۍ پر روح بدلوي، ټول ولس کې د تقوا ماحول وي هر روژه دار نه یوازې خپل ځان له بدو کارونو ژغوري، بلکې نور مسلمانان وروڼه هم د نېکۍ کارونو ته را بلي، هر سړی د روژې نیولو سربېره په ګناه کولو شرمېږي د هر چا په زړه کې پخپله د نېکۍ خواهشات زیاتیږي، چې راځه د ثواب یو کار وکړه، یو غریب ته ډوډۍ ورکړه یو چا ته جامې ورکړه او که چېرته ښکاره د بدې کارونه کېږي، منعه یې کړه د تقوا او نېکي یو ماحول جوړ وي، لکه څرنګه چې د هرې مېوې خپل موسم وي، همدارانګه روژه هم د نېکو کارونو د کولو او خپرولو موسم دی، پر همدې اساس نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: د انسان هر عمل له لسو تراوسوو درجو زیاتېږي، مګر الله تعالی فرمایي چې روژه ترې مستثنا ده، ځکه چې روژه خاص زما لپاره ده او زه چې څومره وغواړم بدله یې ورکوم. له دې حدیث شریف معلومېږي، چې د نېکي کوونکي تر نیت او د نېکي د نتیجې له امله ټول اعمال زیاتېږي او د زیاتوالي لپاره یې یو حد وي، خو د روژې د ثواب او اجر د زیاتوالي هېڅ حد نه شته. رمضان چې د خیر و صلاح میاشت ده او په دغه موسم کې یو نه، بلکې په لکونو، ملیونو انسانان د نېکۍ دغه باغ خړوبوي، له همدې امله یې ثواب بې اندازې دی، دې میاشت کې چې څومره په ښه نیت عمل وکړای شي، ثواب یې هغومره زیات دی، څومره چې د روژې له برکتونو ګټه ترلاسه کړئ هغومره ګټه به مو نورو وروڼو ته هم رسي او بیا چې څومره یې اغېز تر نورو یوولسو میاشتو پاتې کېږي همدومره به د نېکۍ کارونه خپرېږي او که موږ او تاسې پخپله دا ستر عمل محدودوو، دا زموږ خپله ګناه ده.

## د عباداتو نتیجې ولې نه ښکاري؟

د روژې د اغېزو په لوستلو به تاسې فکر کوئ، چې دا اثرات خو موږ نه وینو، موږ لمونځونه هم کوو، روژې هم نیسو، خو نتیجې یې نه ښکاري. ځواب یې دادی چې موږ او تاسې اسلام ټوټې-ټوټې کړی او له ځانه مو پکې ډېر شیان زیات کړي، نو په داسې حال کې موږ د ښو نتیجو هیله نه شو لرلای، بل لامل یې دادی چې موږ او تاسې د عباداتو په اړه غلط فکر کوو، موږ داسې فکر کوو، چې له سهاره تر ماښامه د خوراک او څښاک نه کولو ته روژه ویل کېږي. همدارانګه د نورو عباداتو په اړه، موږ یوازې ظاهري شکل ته عبادت وایو او د عبادت اصلي روح، چې باید زموږ په هر عمل کې وي، زموږ ۹۹٪ ترې غافل دي. له همدې امله زموږ عبادات خپلې اغېزې نه ښیي، ځکه اسلام پر نیت، پوهه او عمل منحصر دی.




# د مکې فتح

**لیکوال: لونګین شینواری**

د الله د رسول صلی الله علیه وسلم او قریشو تر منځ د حدیبیې په صلح کې دا خبره هم شوې وه، چې قبیلې کولای شي له قریشو یا مسلمانانو سره د دوستۍ تړون وکړي، څو له مخې یې یو بل ته کټه ورسي او یو بل له هر ډول تاوانه وژغوري. بني بکر قبیلې له قریشو او خزاعه قبیلې له مسلمانانو سره تړونونه وکړل.

اوربند اعلان و، خو قریشو له خپلې ورانکارۍ لاس وانه خیست، اتم هجري کال و، د بني بکر قبیلې څه کسانو د شپې په پټه او ناڅاپي ډول په خزاعه قبیلې برید وکړ، وهل ټکول او وژل یې وکړل، قریشو په دې ناوړه کار کې په وسلو او سړیو د خپلو انډیوالانو مرسته وکړه، تر دې چې د خزاعه قبیلې خلک حرم شریف ته ننوتل، خو دښمنانو یې هلته هم پرې نه ښودل.

خزاعه قبیلې د عمرو بن سالم الخزاعي په مشرۍ یو وفد د مسلمانانو په لور ولېږه، د الله له رسول صلی الله علیه وسلم څخه یې د مرستې او د تړون د حق د ادا کولو غوښتنه وکړه او د قریشو د خیانت او نه ژمنتوب یاده یې ورته وکړه، دلته نو د مسلمانانو یو زورور او ترهوونکی حکومت جوړ و، د مکې بې وسې او بې کسې له منځه تللې وه او مسلمانانو ته د کفارو پر ضد د هغوی د تېریو په وړاندې د جنګېدو اجازه الله کړې وه، د الله رسول د عمرو بن سالم غوښتنې ته لبیک ووایه، د جنګ په تیارۍ بوخت شو او قریشو ته د یو عبرتناک درس ورکولو اراده یې وکړه.

د قریشو مشرکان دلته په خپله غلطۍ وپوهېدل، وار پار ترې خطا او د خپل ځان د خلاصې په لټه کې شول، ابو سفیان – چې د قریشو له مشرانو څخه و – مدینې ته د الله د رسول صلی الله علیه وسلم په لور رهي شو، مدینې ته په رسېدو د خپلې لور آم حبیبې رضي الله عنها کور ته ننوت چې د الله د رسول صلی الله علیه وسلم بې بي وه، کله یې چې د الله د رسول پر فراش د کښېناستو هڅه وکړه، لور یې په بېړه هغه راټول کړ، پلار یې وپوښتله چې ای لورکې! زه دې د دې فراش اهل ونه بللم او که دا فراش زما له ناستې ټيټ دی؟ لور یې ورته وویل، بلکې دا د الله د رسول صلی الله علیه وسلم فراش دی او ته مشرک او پلید یې، ځکه خو پرې د کښېناستو جوګه نه یې!

د آم حبیبې رضي الله عنها نیت هیڅکله د خپل پلار سپکاوی او بې عزتي نه وه، خو دا چې پلار یې په الله ایمان نه درلود، د الله له رسول او کتابه منکر و او د اسلام او مسلمانانو پر دښمنۍ بوخت و، نو په پوره زړورتیا یې دا هر څه وکړل، بیا یې پلار ورته کړه چې لورې! له ما وروسته په شر اوښتې یې، خو داسې نه وه لکه ابو سفیان چې پټپیله،

بلکې ډېر لږ وخت تېر و چې ابو سفيان هم دې سپېڅلي دين ته غاړه کېښوده او مسلمان شو.
ابو سفيان ووت د الله رسول صلی الله عليه وسلم ته ورغی، هغه هيڅ ځواب ورنه کړ، اوس يې نو پېغمبر صلی الله عليه وسلم ته نږدې خلک لټول پيل کړل، څو د ده او د الله د رسول تر منځ منځګړي شي، يو په بل پسې ابو بکر، عمر او علي ته ورغی، خو هغوی هم چې د الله د رسول په اراده پوه او د هغه له طبعي خبر وو، دا کوښښ ونه کړ چې د ابو سفيان خبره ومنې، بلکې له دې هم پورته له عکس العمل سره يې مخ کړ، ابوبکر صديق رضي الله تعالی عنه ورته وويل چې زه دا کار نه کوم، د اسلام زمري حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته ورغی، ورته يې وويل چې د الله د رسول په وړاندې زما شفاعت وکړه، هغه ورته وويل چې زه به اوس ستا شفاعت د رسول الله په وړاندې کوم؟! قسم په الله که تش کړد مې په لاس کې وي هم جهاد به درسره پرې وکړم، علي رضي الله عنه ته ورغی، هغه ځواب ورکړ چې هلاک شې ابو سفيانه! پېغمبر صلی الله عليه وسلم د داسې يو کار اراده کړې ده چې موږ يې له هغې نه شو راستنولای، ابو سفيان خپلې وسې وکړې، خو دا چې د قوم ګناه يې د ښنلو نه وه نو تش لاس ستون شو.
رسول الله صلی الله عليه وسلم د جنګ تياري پيل کړه او مومنانو ته يې هم د ځان تيارولو وويل، خو د مصلحت له مخې يې له څو تنو مشرانو ملګرو پرته خپل تګلوری هيچا ته څرګند نه کړ، د بخاري او مسلم د رواياتو مطابق د هجرت د اتم کال د رمضان مبارکه مياشت وه، اسلامي لښکر د مکې د فتح په نيت وخوځېد، د تګ پر وخت د الله رسول خپلو ملګرو ته خبره روښانه کړه، چې هدف مکه ده، دلته نو حاطب ابن ابي بلتعة چې صحابي و، د مکې درې تنو مشرکينو مشرانو ته د يوې ښځې په لاس ليک ولېږه، په ليک کې يې هغوی د الله د رسول له ارادې خبرول غوښتل.
کيسه د احاديثو معتبرو کتابو را اخيستې ده، حاطب رضي الله عنه ليک وړونکې ښځې ته په پټه لار د تلو ويلي وو، رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته وحې راغله، هغه دستي علي او زبير رضي الله عنهما په ليک پسې واستول، ځای او ليک وړونکی شخص يې ورپه ګوته کړل او په همغه ځای کې يې له ښځې سره ليک وموند، د الله رسول صلی الله عليه وسلم دغه صحابي راوغوښت او ويې پوښت چې دا کار تا کړی ؟ هغه چې د الله په پېغمبر پوره ايمان درلود، له بهانو پلمو او درواغو تېر شو، سپين يې وويل چې هو، دا کار ما کړی، د الله رسول ترې وپوښتل چې ولې دې داسې وکړل، هغه ځواب وکړ چې ايمان مې رک روغ دی، له دې امله چې په مکه کې مې اهل دي او له قريشو پرې ډارېدم، نو داسې کار مې وکړ چې نه مسلمانانو او اسلام ته تاوان واړوم او نه خپل اهل وبايلم، عمر فاروق رضي الله عنه له پېغمبر صلی الله عليه وسلم نه د ده د وژلو اجازه وغوښته او ويې ويل چې دی کافر شوی، خو مهربان او په مومنانو حريص پېغمبر ورته کړه، چې دی د بدر له جنګيالو څخه دی او هغوی ته وړاندې او وروسته ټولې خطاوې ښنل شوې دي.
د بخاري، مسلم او ابن هشام د رواياتو مطابق مسلمان لښکر له (۱۰۰۰۰) لس زرو تنو جوړ و، کله چې مر الظهران نومې ځای ته ورسېدل، هلته تم شول او د الله رسول صلی الله عليه وسلم مسلمانانو ته د شپې د اورونو د بلولو وويل، قريش چې کله د مسلمان لښکر له راتګه خبر شول، د ابو سفيان په مشرۍ څو تنه له مکې ووتل، څو ځان خبر کړي، چې څه کيږي او څه نه! د مسلمانانو تم ځای ته چې ورسېدل، شپه وه او د مسلمانانو اورونه بل کړي وو، ابوسفيان کړه چې ما دومره اورونه په خپل ژوند کې نه دي ليدلي، ملګرې يې ورته وويل: دا د خزاعه اورونه دي چې جنګ راپاړولي دي، ابوسفيان وويل: خزاعه له دې ډېر کم دي، دغه وخت د پېغمبر صلی الله عليه وسلم تره عباس رضي الله عنه د دوی له څنګه تېرېده – چې دا وخت په اسلام مشرف و - ، د ابوسفيان غږ يې وپېژاند، ورغږ يې کړ، ابوسفيانه! ابو سفيان ځواب ورکړ، قربان! مور او پلار مې درنه ځار شه، تر شا دې څه دي! عباس رضي الله عنه ورته وويل: تر شا مې محمد صلی الله عليه وسلم دی او (۱۰۰۰۰) لس زره تنه مسلمانان ورسره دي.
عباس رضي الله عنه ابو سفيان ته وړانديز وکړ چې پېغمبر صلی الله عليه وسلم ته ورسره ولاړ شي، تر شا ورسره سپور شو، پر لاره مسلمانانو هيڅ ونه ځوراوه، کېږخ پېغمبر صلی الله عليه وسلم ورسره مخ شو، پېغمبر صلی الله عليه وسلم دلته داسې ونه کړل چې ابو سفيان بېرته وشړي او ووايي چې بس اوس موږ تياری کړی دی او خامخا جګړه ده، د هيچا توبه د قبلېدو نه ده او بايد د ټولو سرونه غوڅ شي، نه، هغه پېغمبر و او پېغمبر د نجات لپاره

رالېږل شوی وي، خلک ژغوري، پېغمبر د الله رحمت وي، غضب نه وي، ځکه نو د الله مهربان رسول ورته کړه: ابو سفيانه! ایا وخت نه دی چې په دې پوی شې چې له الله پرته د بندګۍ وړ هیڅوک نه شته ؟ ابو سفيان وویل: مور او پلار مې درنه ځار شه، څومره عزتمند او خپلولي پالونکی یې، ما ګومان کاوه، که له الله پرته بل خدای وای، له ما به یې بار سپک کړی وای، پیغمبر علیه السلام ورته بیا وویل: ایا وخت نه دی چې په دې پوی شې چې زه د الله استازی یم ؟ ابو سفيان وویل: په دې اړه لا هم شکمن یم، عباس رضي الله عنه ورته وویل: هلاک شې، اسلام ومنه، ابوسفیان مسلمان شو او د شهادت کلمه یې وویله.

عباس رضي الله عنه وویل: ای د الله رسوله! ابو سفيان داسې سړی دی چې خوښه کېږي، وویاړي، نو لږ څه یې ونازوه، د الله نازولي رسول وفرمایل: "هو! څوک چې د ابو سفيان کور ته ننوت، په امان کې دی، چا چې په ځان پسې خپله دروازه وتړله، په امان کې دی او څوک چې د الله کور ته ننوت، په امان کې دی".

ابو سفيان له دې سپېڅلي او مهربان پیغام سره ستون شو او پېغمبر صلی الله علیه وسلم مکې ته د ننوتو تیاري پیل کړه. په ذي طوی نومې ځای کې د الله رسول خپل لښکر په پنځو برخو ووېشه، د لومړۍ برخې مشري یې په خپله غاړه واخېسته، د یوې ډلې مشري یې زبیر بن العوام ته ورکړه، د دې ډلې دنده د مکې شمالي سیمه نیول وو، بلې ډلې ته یې د خالد بن ولید تر مشرۍ لاندې مکې ته له جنوبي اړخه د ننوتو قومانده وکړه، څلورمه ډله یې د ابوعبیده تر مشرۍ لاندې د مکې د شمال غرب اړخ په نیولو وګمارله او وروستۍ ډله یې د قیس بن سعد بن عباده تر مشرۍ لاندې مکې ته له جنوب غرب لوري په ورننوتو وګمارله.

له خالد بن ولید پرته ټولې ډلې له کوم مقاومت پرته مکې ته ننوتې، صفوان بن امیة او عکرمه بن آبي جهل د مکې په جنوب کې له خپلو ملګرو سره د جګړې لپاره ناست وو، خالد رضي الله عنه ورته د وسلې د غورځولو وویل، خو هغوی جنګ غوره کړ، بیا خالد ترې څه خلک ووژل او دوی هم مات شول، مکې ته د ننوتو پر وخت د مسلمانانو بیرغ له سعد بن عبادة سره و، کله چې د ابو سفيان له څنګه تېرېده، ورته یې کړه چې نن د حلالي ورځ ده، نن به کعبة حلالیږي، یعني وژنه به کوو، دا خبره پېغمبر صلی الله علیه وسلم ته ورسېده، هغه صلی الله علیه وسلم له سعده د بیرغ د اخېستو او زبیر رضي الله عنه ته یې د ورکړې امر وکړ او ویې ویل: بلکې دا هغه ورځ ده چې د کعبې تعظیم په کې کیږي، دلته وینو چې د الله رسول خپل پیروان څنګه روزلي دي، سعد چې د مسلمانانو بیرغ یې په لاس کې، د الله د رسول د امر په وړاندې یې هیڅ غږ.ونه ویست، دستي یې د امیر اطاعت ته غاړه کېښوده او بیرغ یې تسلیم کړ، دا هم وینو چې د الله پېغمبر د دغې تښې ډکولو ته دستي تیار کسان لري او که یو له څه وجهې لرې کیږي، بل یې دستي ځای نیسي، چې یو له بل غوره دی، دا د الله د رسول په جنګي مهارت او غوره قیادت دلالت کوي.

د الله رسول د مکې (۳۶۰) بتان رانړول او دا آیت یې تلاوت کاوه(وَقُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ آنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا) او د الله له کوره یې طواف وکړ، له طواف وروسته یې د بیت الله کیلیاني وغوښتې، بیا وَرننوَت، کوَرَي دننه ډول ډول انځورنو د کعبې دېوالونه بدرنګ کړي دي، د انځورونو د له منځه وړلو امر یې وکړ، د الله د کور په ټولو څنډو کې یې تکبیرونه وویل، او لمونځ یې ادا کړ، دا ایت یې ښه تطبیق کړ: ( الَّذِينَ آن مَكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ) ترجمَه: (هَغه خلک –مؤمنان- چې کله موږ په ځمکه کې بریا ورکړو، لمونځ قایموي، زکاتونه ورکوي، په نېکیو امر او له بدیو منع کوي، او د چارو انجام الله لره دی).

له دې مخکې ایتونو کې الله ویلي چې یقینا الله له هغو خلکو دفاع کوي کومو چې ایمان یې راوړی...بیا ورپسې دا ایت راغلی دی، همدا باید د یو فاتح مومن خاصه وي، اسلامي لښکر باید دغه ډول اخلاق ولري، که دښمن مات شو، ښار فتح شو، واک او اختیار ستا شو، نو دا ټوله د الله مهرباني ده، هیڅوک یې د الله له مرستې پرته نه شي ترلاسه کولای، ځکه نو له دې وروسته باید په دې ښار یا هېواد کې هماغه څه پلي شي چې الله یې غواړي.

له فتحې وروسته باید لمونځونه قایم شي، زکاتونه ورکړل شي، په هر نېک کار امر او له هر بد کاره منع وشي، نه دا چې د خپل زړه خبره ومنو او چې څه زموږ نفس غواړي هغه وکړو، د مسلمان خاصه دا نه ده چې له فتحې وروسته یا ودانۍ ونړوي، یا خلک وځوروي، یا بې وزله ولس ته خپل زور ځواک وښیي او یا دا چې د ټوپکو او توپونو خولې

اسمان ته نېغې کړي او د خوشحالۍ ډزې وکړي. نه! باید د الله د رسول سیرت مطالعه او د هغه پر پل قدم کښېږدي.
پېغمبر صلی الله علیه وسلم ټولو مسلمانانو ته امر کړی و، چې مکې ته د ننوتو پر وخت تر هغې پر چا لاس پورته نه کړي، تر څو چې هغه پیل نه وي کړی، خو څو تنه داسې هم وو، چې د خامخا وژلو امر یې وکړ، اګر که د کعبې په دېوالو پورې نښتي هم کېر شول.
یو عبد الله بن سعد، د عثمان رضي الله عنه رضاعي ورور و، دی لومړی مسلمان شوی و، د الله سول صلی الله علیه وسلم ته یې وحې هم لیکله، له دې وروسته له اسلامه واوښت او وتښتېد، ځکه یې د وژلو امر شوی و، د فتح په ورځ د عثمان رضي الله عنه خوا ته وتښتېد، هغه تر هغې پټ کړ، تر څو چې د الله رسول صلی الله علیه وسلم له خلکو سره بیعت پیل کړ، عثمان رضي الله عنه دی راوست او د امان غوښتنه یې ورته وکړه، د الله رسول ډېر وخت چوپ و، په دې انتظار چې کوم صحابي به راپورته شي او وبه یې وژني، بیا یې وویل: هو! یعنې امان یې ورکړ، دی وروسته مسلمان شو او د عمر، عثمان او علي رضي الله عنهم پر وخت یې دندې درلودې.
بل تن عبد الله بن خطل و، دی هم لومړی مسلمان و، بیا یې خپل یو مسلمان خادم په خدمت کې د لږ کمي له امله وواژه او مرتد شو، د فتح پر وخت یې سزا ولیده او ووژل شو.
د دې سړي دوه سندرغاړې وې، د الله د رسول بدې به یې بیانوله، د دوی د وژلو امر هم شوی و، لومړۍ یې ووژل شوه، دوهمه وتښتېده او څه موده وروسته د الله رسول ته راغله، امان یې غوښت، رسول الله امان ورکړ.
بل تن حویرث بن نقیذ و، ده د پېغمبر صلی الله علیه وسلم مظلومې لوڼه هغه وخت د اوښ له شا لاندې راغورځولې وې، کله چې هغوی د عباس رضي الله عنه په ملتیا له مکې څخه د مدینې په لور روانې وې، د ده چاره علي رضي الله عنه وکړه او ویې واژه.
بل تن مقیس بن حبابة و، د ده ورور له یوه انصاري څخه په خطا کې وژل شوی و، ده هغه انصاري هم وواژه او مرتد هم شو، دی هم د خپل قوم د یو تن له لاسه ووژل شو.
بله سارة وه، له بني عبد المطلب څخه د چا ازاده کړې شوې وینځه وه، دې په مکه کې د الله رسول ځوراوه، دا هم وتښتېده، وروسته چا ورته امان وغوښت او ورکړل شو.
بل تن د ابو جهل زوی عکرمه و، له اسلامه مخکې د مسلمانانو کلک دښمن او د قریشو له مشرانو څخه و، دی د یمن په لور وتښتېد، بې بي یې اسلام ومانه، بیا یې خپل مېړه ته د الله له رسوله د امان غوښتنه وکړه، هغه صلی الله علیه وسلم امان ورکړ، وروسته یې راپیدا کړ او په اسلام مشرف شو.
پورته کسان ټولو د داسې ګناهونو مرتکب وو، چې باید وژل شوي وای، چا بر ناحقه مسلمان وژلی و، څوک له اسلام منلو وروسته مرتد شوی و، په چا کې دا دواړه ګډ وو، نورو یې د الله رسول او مسلمانان په بېلا بېلو ډولونو ځورولي و، د الله د دین، د هغه د رسول او د مومنانو سپکاوی، پرې ملنډې وهل او وژل یې، دومره وړې خبرې نه دي، دا داسې جرمونه وو چې سزا یې مرګ وه، ځکه یې پېغمبر صلی الله علي وسلم د وژلو امر وکړ، بیا نو څوک د خپل عمل په سزا ورسېد او پر چا الله مهربانه شو او بېرته یې نېغې لارې ته برابر کړ.
یو داسې حالت لا پاتې و، چې ټول قریش ورته په اندېښنه کې وو، خپل تېر جرمونه ورته ټول سترګو ته ولاړ وو، د الله پر رسول او مسلمانانو هر ډول بندیزونه، درې کاله یې له پخې لوږې تندې سره مخامخول، وهل ټکول او په کاڼو ویشتل، ډول ډول عذابونه، ان چې ځینې مظلوم صحابه یې په شهادت ورسول، بیا یې ټول مسلمانان او د الله رسول دې ته اړ کړل، چې خپل خوږ ټاټوبی، د خاپوړو وطن، د زېږېدنې، کوچنیوالي او د ځوانۍ د عمر استوګنځی، خپل خپلوان، قوم قبیله، کورونه او مالونه... ټول تر شا پرېږدي او بل لور ته هجرت وکړي، مدینې ته یې مهاجر کړي او بیا یې هلته هم په کرار پرېنږدي.
د هجرت په شپه یې له ښکا تر سبا د دې لپاره د رسول الله کور محاصره کړ، چې سړی ژوندی ونه وځي، پرلپسې جګړې یې ورسره وکړې، نږدې ملګري او نږدې او له هر چا ډېر ورګران خپل خپلوان یې ورته شهیدان کړل، نور ډول ډول خیانتونه یې وکړل، خو د الله اراده بل ډول وه، اوس کیسه بدله ده، هماغه کمزوري خلک د دوی پر سر ولاړ دي او فیصله یې د الله د رسول په لاس کې ده، قریش راټول دي او د پرېکړې انتظار کاږي، د الله رسول وایي:



: له الله پرته د بندګۍ وړ هیڅوک نه شته، الله خپله وعده رښتیا کړه، د خپل بنده مرسته یې وکړه او ډلې یې ټولې ماتې کړې....بیا یې قریشو ته وویل: ای د قریشو ټولیه، څنګه انګېرئ چې زه به څه درسره کوم؟ هغوی چې محمد صلی الله علیه وسلم یې د خپلو ځانونو او خپل اولاد غوندې پېژند، نېکي، صله رحمي، د مظلومانو مرسته، امانتداري او نور ټول غوره اخلاق او بې ساري خویونه یې ورمعلوم وو، خو د کبر، غرور او کینې له امله په خپل کفر ټینګ ولاړ و، وویل: د خیر تمه درنه لرو، مهربان ورور او مهربان وراره یې، د الله رسول چې د ټولې دنیا لپاره رحمت و، له هغوی خپله بدله وانه خیسته، هیڅ یې هم ورته ونه ویل، له دې پورته یې ورسره ډېره لویه نېکي هم وکړه، کولای یې شول ټول له تېغه تېر کړي، خو نه، رحمة للعالمین دی، غوښتل یې دا خلک وژغورل شي، دنیوي او اخروي کامیابي یې دواړه په برخه شي، د دوزخ له اوره بچ او پر جنت ورننوځي، لکه د طایف د سفر پر وخت یې چې د عذاب پرښتې ته ویلي وو چې کېدای شي د دوی له شاګانو الله داسې خلک وزېږوي چې د یوازیني الله بندګي به کوي، نو مه یې غرقوه، دا وارېې هم قریشو ته وویل چې: درومئ، تاسو ازاد یاست، د ښښنې یو ژور درس یې ورکړ، خپله وفا او له دوې سره همدردي یې ورته سمه ثابته کړه، او د الله جل جلاله دا قول یې ډېر ښه تطبیق کړ چې:( وَلاَ تَسْتَوِي الْحَسَنَةُ وَلاَ السَّيِّئَةُ ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ )ترجمه: (او نېکي او بدي سره برابر نه دي، په هَغهَ خویوَنو – دا بديَ – دفعَ کوه چې ډېر ښه دي، نو ناڅاپه به هَغه څوک چې ستا او د هغه تر منځ دښمني وي، داسې شي لکه مهربان دوست).

همداسې وشول، بدي په نېکۍ دفع شوه، د ظلمونو، څورونو، شړنو، وهنو او وژنو بدله پوره ازادي شوه، ډېره لږه موده تېره وه چې مکه ټوله مسلمانه شوه.



# دوه جنازې




دواړه انسانان يادېږي، دواړه د يوې سيمې هم ول، د کندز ولايت چهار درې ولسوالۍ سرک بالا سيمه د دواړو انسانانو د روحونو د الوت ځای و. د دواړو توپير دا و، چې يو د الله جل جلاله د لارې سپېڅلی اتل مجاهد و او بل د يرغلګرې ادارې په کرغېړن فکر جوړې شوې بدنامې ليکې اربکي ملېشې غړی و.

د روان عيسوي کال د می د مياشتې په دېرشمه نېټه مجاهدينو هوډ وکړ چې د اربکيانو پر پوسته بريد وکړي او سيمه تر خپل کنټرول لاندې راولي. د شپې يوولس بجې بريد پيل شو، لله الحمد پوسته ډېره په اسانۍ خو د يوې لويې قربانۍ په نتيجه کې ونيول شوه، شپږ مجاهدين ټپيان شول او يو مجاهد معلم رحمت الله شهيد شو.

شهيد معلم د ګلستان زوی، د کندز د چهاردرې ولسوالۍ، حاجي امان الله شهيد کلي کې سترګې غړولې وې. د ښه سيرت څښتن و، هشاش و بشاش انسان و، جهاد يې د روح غذا وه، د ګران هېواد ډېرې سنګرونه يې په خپل روح روان جهاد تاوده کړي وو. کله به چې له سنګره راستون شو، بيا به يې د مجاهدينو په تربيتي مراکزو کې له تنکيو مجاهدينو سره خپله غاړه وړله، خدمت به يې کاوه او کوښښ يې دا و، چې دا د جهاد مدرسې همداسې تاندې او ځپاندې ووينې، دا د جهاد مدرسې له ولوله انګېزو مجاهدينو خالي نه شي.

د شهيد معلم د جنازې اعلانونه وشول، سهار لس بجې د حاجي امان الله شهيد کلي جامع جومات کې جنازه ادا کېدله. ډلې ډلې خلک نومورې جومات ته ورمات شول، د هر چا په خوله د دې خوشال طبع او اخلاقي انسان يو کيسه څرخېده، هر چا به يې يوه خاطره ويله، ماحول ډېر غمژن و، د وير هوا د سيمې د ونو تر منځه په غلي او خپ اواز د شهيد په فراق يوه ويرژنه سرينده غږوله، د همدې ويرژنې سرينديې تر څنګ يوه هاتف د سيمې خلکو ته داسې پيغام هم اوراوه چې په اف او اسويليو څه نه کيږي، د همدې شهيد په څېر تاسې هم د دې هېواد خلک ياست، دا دين ستاسې هم دی، دا ولس پر تاسې هم حق لري، ولې لاس تر زنې ناست ياست؟ ولې مو لاسونه تړل شوي؟ ولې مو ولولې او احساسات د انتقام عزمونه نه تازه کوي؟ ولې مو لا همدا شېبه د جهاد تياری نه دی کړی؟

د شهيد معلم د اخري ديدار مراسم وو، خلک به ډلې ډلې ور روان وو، د هر چا په خوله دعا وه او هر چا د شهادت ناز ورکاوه، يو وخت چې د خلکو بيروبار شو، د مشرانو په غوښتنه د سيمې جيد عالم مولوي سيد رحيم حقاني وينا پيل کړه، الله جل جلاله دې خير ورکړي، ډېره په زړه پورې او د وخت مناسبه وينا يې وکړه، خلک يې وپوهول چې شهيد معلم رحمت الله او ده ته ورته شهيدان ټول د

اسلام د لارې سپېڅلي قربانیان دي، همغه د لوړو جنتونو وعدې له همدې شهیدانو سره شوې، بالمقابل د دوی مخالف خلك یې د کفر لاروي او د بوسو په تول خرڅ شوي یاد کړل، دا هغه بې ایمانه او بې قیمته خلك دي، چې د قیامت په ورځ به یې هیڅ قیمت نه وي. خلك یې وهڅول چې خپل بچي او وروڼه د کفر له لارې وژغوري، داسې نه چې بله ورځ د مسلمان د ټوپك شپېلۍ پرې په دې دلیل راوڅرخېږي چې د کفر په صف کې ولاړ وي !

د جنازې په مراسمو کې د شهید معلم حقیقي وارثان هم وو، چې ټوپك په لاس چاڼته په غاړه یې د شهید معلم کورنۍ ته تسلیت او ډاډ ورکاوه، چې د شهید لاره به تعقیبوو او ترهغې مو چې د ده انتقام نه وي اخیستی، ترهغې چې دا کفار دلته حاکم وي، موږ به د شهید معلم لار نیولې وي او د ده په څېر به د جهاد سنګرونه په جلوه افروزه تکبیرونو ښکلې کوو.

د شهید له جنازې وروسته د کرزي عسکرو بیا پر مجاهدینو برید وکړ، غوښتل یې د اربکي ملېشې انتقام واخلي او سیمه کنترول کړي، خو بیا هم للّه الحمد تلفات کفري ځواکونو ته واوښتل، دا چې کفر ته ټول مسلمانان یو ډول ښکاري، نو د مجاهدینو پر ځای یې پر عام ولس برید خبښ کړ، پر کورونو یې هاوانونه وورول، ډېری عام مسلمانان یې شهیدان کړل، له دې جملې څخه یو تن اجمل دی، چې د سیمې د ښوونځي مدیر او ښوونکی دی، په کور یې د هاوان مرمۍ ولګېده، یو ۱۳ کلن زوی یې په شهادت ورسېد او بل یې سخت ټپي شو.

جګړه چې پای ته ورسېده، د همدې سیمې یو اربکي هم په کې خپل ځان بایللی و، اوس سړی نه پوهیږي، چې دې اربکي به د کوم راتلونکي په تمه خپل سر شیندلای وي؟ د کوم جنت په تمه؟ د کوم مقتدر د رضا لپاره؟ د کور خلك به یې څه احساس کوي، چې دوی شهید ورکړ؟ که د وطن (امریکا) په لار یې سر وبایله؟

دوی ته به د خپل مړي د قوت او سپېڅلتیا ښه اندازه شوي وي، څکه چې جنازه یې د ګوتو شمېر خلکو وکړه، خپل خپلوان ورته له شرمه راټول شوي ول. جنازه کې یې د امریکا نفرخدمتو شخصیتونو شرکت وکړ، ښې دعا ګانې به یې ورته کړې وي، اوس دې اوباما راشي او دا اربکی دې د اللّه جل جلاله له عذابونو وژغوري، د کرزي ادارې جنرالان، د ایساف جنګیالي او نړۍ د سترو قوتونو قومندانان دې د دې اربکي روح ښاد کړي !

د چا جنازه چې د کفارو او منافقینو په دعا ترسره شي، د هغه به څه حال وي، اوس دې کورنۍ ورسره هغه ډالر ښخ کړي، چې اوباما ورکړي، نه یې کوم عالم پر قبر دعا او وینا وکړه، نه د کوم عام مسلمان له خولې ورته دعا ووته او نه د کوم قومي او ولسي سړي له ګوګله د خپګان اسویلی ووت.

زما په فکر دا دواړه د پند او عبرت جنازې وې، ولې یوه جنازه د خلکو له بیروباره، ژړا او ویر جوړه ده؟ او ولې بله جنازه کې د چا زره رپ هم نه خوري؟ ولې یوه جنازه د ویښتیا او بیدارۍ الهام ورکوي؟ او بله د شرم او عار پیغام ورکوي؟ معنی هم دا ده چې د جهاد صف د حق لار ده او مقابله لار یې د باطل او شیطان لار ده !






لیکوال: داکتر نجیب الکیلاني
ژباړن: سید جمال حماس

(٦)

نجمة اللیل مې پرېښوه او د څوارلسمې شپې سپوږمۍ ته مې وکتل، که څه هم وریځو پټه کړې وه، ما بیا هم د سپوږمۍ په مخ کې هغه تلپاتې خندا لوستلای شوه، چې له زرګونو او لا زیاتو کلونو څخه تر اوسه په بشپړ ارامۍ او وقار سره په کې ځرګندېږي، ای هغې سپوږمۍ چې تیارې ننګوې! زه ستا په رڼا د ځرځایونو په منځ کې د انقلابیانو مشر ته روان یم.. سپوږمۍ!

زه چې کله یو، سل او یا زر یادوم، نو انقلابیانو سره ظلم کوم، هغوی تر دې زیات دي، د جنرال محمود محیطي، ستر جنرال عثمان باتور، جنرال شریف خان او جنرال عثمان اوراز په څېر، د غرونو څوکو ته د جاسوسانو هغه ډله راورسېده چې ولسوالیو او ښارونو ته تللې وه، د هغه بد حال خبرونه یې ورکړل چې په ترکستان کې یې زموږ مبارز ملت د پښې او بار لاندې زوېرګي کوي، د کال په اخر کې یو سخت یخ سېلاب پیل شو.

خواجه نیاز وویل:

په اوروموچي کې به سره یو ځای کېږو، چې په کې د عمومي چینایي حاکم ماڼۍ ده.

موږ پوهېدو چې دا یو اوږد پړاو دی او تر شا یې ویني اوګواښونه پراته دي، زه د جنرال محمود محیطي له خبرو وپوهېدم چې ویل یې:

موږ سره به د الله ساتنه او رعایت وي.

ما وویل:

ای سترو پلارانو! دې پېښو زموږ ځیني ځوانان له ځانه سره یوړل.

خواجه نیاز له خندا وروسته وویل.

کله چې د حقیقت لمر را وخیژي، دا ټولې دروغ افسانې ویلې کیږي.

د غرونو په واورو پوښلو لوړو څوکو ته یې وکتل او زیاته یې کړه:

د الله اراده د ځمکې له هرې فلسفې ځواکمنه ده، هغه څه چې تاسې یې همېشنی بری ګڼئ یوه وختي ځلا ده، چې ډېر ژر به مړه شي، د تاریخ په هر عصر کې ځیني مغروره خلک د الله تعالی وینا ننګوي او بیا یو څه بریالیتوبونه تر لاسه کوي، خو ډېره لږې او ناشونې ده، الله تعالی فرمایلي دي ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾.

د الله په مرسته ورځئ او غیر له الله له بل هیچا وېره مه کوئ!

د ترکستان په ملت کې مې یوه نا اشنا حالت ولیده، دا هغه ملت دی چې ویده و، تسلیم شوی و، ټپي و، غمونه او کړاوونه ترې د وینو په څېر بهېدل، نهیلۍ یې په زړه کې ځاله جوړه کړې وه، همدې ملت چې کله زموږ ډلې د راتګ پر مهال ولیدلې، ناڅاپه یې ستړیا او کمزوري لکه د ګرد په څېر له خپلو اوږو وڅنډله، په یوه بې ساري او زیاته خوشحالۍ کې یې سترګې پرانیستلې او موږ سره روان شو، ای الله! چینایان چېرته دي؟ دوی خو وېرېدلي او تښتي، ډېر یې اسلام ته غاړه ږدي او زموږ تر څنګ جګړه کوي، د چینایانو تر لاس لاندې پېغلو ته ازادي ورکړل شوه، هغوی هم

راووتلې او په جګړه کې برخه اخلي.
هغه مې په يوه نښته کې وليدله، چې غټې او چاغ سرې يې رانيولې او خلک يې شا او خوا راټول دي چکې وهي، دا ښځه څوک ده ؟ هغه د کاشغر يوه مېرمنه ده، چې خاتون نوميږي، او دا سړی يو چينايي افسر دی، دې ښځې نيولی او د يوې غټې ونې د ډډ پورې يې تړلې دی، افسر له ونې د حلال شوي غويې په څېر څرخونه خوري، ښځه يې په ملا په چابک وهي، او ورته وايي:
تا ماته وويل: ای خاتون! ته زما يې او هېڅ يو خدای نه شي کولای چې تا له ما خلاصه کړي، تا زه يوې ناولې جونګړې ته بوتلم، ياد دې دي؟ زه تاته زر کرته وايم، زه تا بد ګڼم، او بيا دی هم بد ګڼم، ته به له ما هېڅ هم تر لاسه نه کړې، ما تاته بيا بيا وويل چې الله له تا او له ما قوي دی، ای ملعونه تا زه لغړه پرېښودم، خپل نشه سړي دې راوستل چې په يوه بې چاره او تړل شوو لاسونو مېرمنې راغورځېدل، په يوه باراني ورځ کې په ژړا وم او اسمان ته مې کتل...د زړه له تله الله ته دعا وکړه، تا ما پورې ملنډې ووهلې او راته دې وويل:
الله ستا اواز نه اوري، دلته چې څوک موجود دی هغه زه يم، ای صن لې! اوس چېرته يې ؟ دې سړيو ته وګوره چې له هر لوري را روان دي، هغه بيرغونو ته وګوره چې رپيږي، ايا الله دې وپېژندلو؟ خبرې وکړه ، اهـ، ته اوس سجدې کوې، خاورې مچوې او د هغه الله مرسته غواړې چې ورڅخه منکر وې، ته نارينه يې؟ زه پوهېږم چې ته بد ذاته له مرګه وېرېږې، خو ای رذيله! تا زما زړه ټپي کړ او زما بدن دې ټپي کړ، د کومې ښځې چې سپېڅلتيا په زور ټپي شي، زموږ په شرعه کې د دې مجرم لپاره له مرګ پرته بله سزا نه شته .
خواجه نياز دې اغېزمن منظر ته وکتل او ويې ويل:
داسې ښکاري چې دا ښځه ليونۍ شوې ده.
د کاشغر يو سړی ور وړاندې شو او ويې ويل :
ټول کاشغر د هغې له کيسې خبر دی.
خامخا به ډېره ځورول شوې وي.
صاحبه! هغه د يو عزتمند کور مېرمن ده.
همداسې ښکاري.
چينايي افسر ته له دې پرته بل څه خوند نه ورکولو، چې د ابرومندو کورنيو په لوڼو لوبې وکړي، هغه ډېر ستر عالمان او ديني خلک وژلي وو.
خواجه نياز تړل شوي چينايي افسر ته وروړاندې شو : څه دې کړي؟
بندي په سترېو سترګو وروکتل او ويې ويل:
پرون د يو بريالي له حقوقو برخه من وم او عملي کول مې.
د بريالي حقوق څه دي؟
خو هغه ونه شول کولای ځواب ووايي، خواجه نياز ورغبرګه کړه:
دا چې اصيل ارزښتونه تر پښو لاندې شي؟
ما هغې سره مينه وکړه او د ځان له پاره مې غوره کړه .
تا د همدې له پاره جګړه کوله؟
ما هغه څه کول چې هغوی کول او د هر څه مسئولين قوماندانان دي.
خواجه نياز ولاړو خلکو ته وويل :
ده ته وګورئ! له موږ د هغو خلکو محاکمه غواړي، چې دا يې دلته راوستی دی.
بيا يې هغه ته وکتل او ويې ويل:
د الله په وړاندې به يوازې درېږو.
ايا تا دا ايت نه دی اورېدلی؟ ﴿وَكُلُّهُمْ آتِيهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَرْدًا﴾.
طبعي ده چې نه، موږ به ستا د قوماندانانو په جرم تا سره حساب ونه کړو، بلکې د هغه څه حساب درسره کوو چې ستا خپلو لاسونو تر سره کړي دي .
چينايي افسر را پرېوت او چغې يې کړې:
مرګ نه غواړم.
خاتون په زوره وخندل او خواجه نياز ته يې وويل :
محترم رئيسه! مظلومانو به له ده د رحم غوښتنه کوله، ما يوه شپه له يو شريف ځوانه واورېدل چې د ده په وړاندې يې چغې وهلې، نه غواړم چې مړ شم، همدغه خبرې چې نن يې دا کوي، خو هغه بې حيا او سپين سترګی و.
خبرې يې اورېدې کړې او افسر ته يې وکتل:
انکار کوې؟ ته سپک او بې حيا وې، په ارام دې خپله توفنګچه راپورته کړه او څو ډزې دې وکړې.

بیا خاتون په خبرو پیل وکړ، په اوریدونکو راوګرځېده، په غمژن او دردمن غږ یې وویل:
هغه ځوان له درده تاوېده او زوېرګي یې کول، سترګو یې ژوند ته په خواشینۍ چغې وهلې او دې سپک سپي د چای پیاله څښله، په خوند خوند یې سګرټ څکولو، له یخنۍ به یې پر خپل بدن بالاپوش سمولو او خندل یې، بیا به یې زه په زوره په خپل ورانه کېنولم، په یو خنجر به یې زما په اننګیو لوبې کولې، فکر وکړئ! فکر وکړئ! زما مخ ته وګورئ! د پخوانیو ټپونو نښې اوس هم زما پر مخ شته، خو د هغه مخ به له خوښۍ ځلېده، او زما د وینو څاڅکي به یې رودل.
بیا یې د لېونتوب په څېر چغه کړه:
محکمه!!!!

چوپتیا خپره شوه، ټولې سترګې په ژړېدونکې اوترې ښځې او د ونې پورې تړل شوي مات افسر ونښتلې، په څو شېبو کې یو له شپېتو کلونو زوړ سپین ږیري صفونه څیرې کړل، په لاس کې یې یوه پخوانۍ توره وه، موږ لا په ځان پوهېدو چې د هغه تورې د ضابط سر پرې کړی و او ګډوډې خپره شوه، خو سپین ږیرې چغې کړې.
زه د هغې پلار یم.
خاتون خپل پلار پورې ونښتله او نیاز خپلو سرېو ته د تګ امر وکړ، د کاشغر او نورو ښارونو په شا او خوا کې د جګړې اور بل شو او انقلابیانو ازادې کړای شوې سیمې له هر خاین او اشغالګره جارو کولې.
په هر ځای کې لسګونه غمژنې کیسې ویل کېږې، خواجه نیاز به له ځان سره ویل (زه د هغې پلار یم)، دا کلمې به یې په خورا فکر سره تکرارولې، داسې احساس یې کاوه چې هغه یې هم پلار دی، ټولو ته به یې په ټینګار سره ویل، هغه ترکستان چې د ناخوالو له کبله ځوربږې، د تل لپاره یو مسلمان محسن پلار ته اړتیا لري، دغه راز شریفو زامنو ته اړتیا لري چې له شرف او وجود څخه یې دفاع وکړي او د بدني او نفسي ټپونو غچ یې واخلي.
ما ته لعنتي نجمة اللیل را په زړه شوه، کاشکې هغه هم د خاتون په څېر وه.
خو اوس زه ولې په نجمة اللیل کې فکر کوم، زه خو یې پلار نه یم او هغه د خاتون په څېر نه ده، دا هسې زهرجن بړاسونه دي چې له سختو حالاتو را پیدا شوي دي، په هر ښکلي باغ کې داسې ازغي را شنه کېږي چې ګوتې وینې کوي او کله کله د ګلابونو په منځ کې هم مار پټېږي، نجمة اللیل هم د دې سپک او کمزوري چینایي افسر په څېر یو شی دی، لازمه ده چې زموږ جګړه د هغه د لښکر او هغه زهرجنو وژونکو بړاسونو پر ضد وي، چې نجمة اللیل سره مشابهت لري، او یا داسې نور.
هر ځای کې ارامي خپره شوه، په کاشغر کې نوی جمهوریت اعلان شو، خواجه نیاز د ترکستان د جمهور رئیس په توګه غوره شو او یو بل ښه سړی چې قاهرې ته مهاجر شوی و او نوم یې مولانا ثابت و، د نوي حکومت رئیس وټاکل شو، د وزیرانو شورى او د استازو غونډه هم جوړه شوه، زموږ نژدې ټولې ځمکې ازادې شوې، څه موده وروسته د ارومچي د ښار محاصرې ته مخه شوه، چې د چینایي حاکم مرکز او وروستی سنګر و.
زه د داسې یوې دندې د تر سره کولو لپاره واستول شوم، چې د ځواکونو د راټولولو او په قومول کې یې د اوامرو نشر پورې اړه درلوده، زه قومول ته په بریالیتوب سره د رسېدو له کبله خوشحاله وم، څومره په زړه پورې ده چې یو سرتېری خپل پلرني هېواد ته بریالی ورستون شي، لوړ سر تګ کوي، خلکو ته په مینه او صمیمیت سره ګوري، د ځان او د ښار د خلکو تر منځ د یوې قوي اړیکې د شتون احساس کوي، داسې احساس کوي چې هغه د خلکو د زړه اواز دی، د دوی د روحونو، خوښیو دردونو او هیلو یوه برخه ده، ستر بریالیتوب لکه یو ستر درد، چې زړونه سره یو کوي او هیلې په یو لوښي کې ویلې کوي.
راستون شوی سرتېری د لارې ځمکه په ویاړ سره پایمالوي، له کرکیو راڅرګندو شویو ښایسته او نېکمرغه مخونو، او د کوچنیانو سپینو ځلېدونکو مخونو ته ګوري، چې په ارامۍ او نېکمرغۍ کې ګرځي راګرځي.
راستون شوی عسکر احساس کوي چې ځینې مسئیولیت یې اداء کړی دی، په داسې حال کې چې

چې هغه پرون په زور سره په کلاګانو اوښتلو او په خپل زور توپ یې ډزې کولې، د چینایانو چټلتیا څخه ځایونه پاکوي او همدا زه راستون شوی عسکر یم، څومره خوږې سندرې دي، تر ټولو زیاته خوا مې په دې یخه شوه چې چینایي یرغلګر رارغړېدل او وژل کېدل، بیا به سمدستي الله تعالی یادولو، زه ډاډه یم چې هغوی دروغ نه ویل، بې شکه چې د غم پر مهال د هغوی له سترګو پرده لرې شوه او په خپل فطرت او اصلیت سره الله تعالی ته راستانه شول، هغه لمړنی ازلي حقیقت چې هیڅ دروغ په کې نه شته.

تلم ...تلم.....او ځمکه مې په خپلو نویو بوټانو وهله ..چې د شا له لورې مې یو اواز واورېد چغې یې وهلې:

دا دې یو ځل بیا راوګرځېدې، مصطفی مراد حضرته! سوګند دی چې ته د همدې لپاره راغلی یې او هغه لټوې.

شا ته مې وکتل، دا منصور درغا و، ښې لاس یې په یوه غټه پټۍ تړلی و، سر یې هم په یوه وړه پټۍ تړل شوی و، په ارامۍ سره مې ورته وویل:

نژدې وه چې ودې نه پېژنم....

موږ دواړو غېږې سره ورکړې، منصور درغا وویل، څه موده مې په روغتون کې تېره کړه، زما د مټ نه یې دوه درې مرمۍ وویستلې نه پوهیږم څو وې، ویل یې چې لاس به مې د څه مودې لپاره شل وي، خو دا کومه مهمه خبره نه ده.

بیا یې سر ښکته کړ او په غمژنه توګه یې وویل:

ډېر خلک ووژل شول، له مرګه مې کرکه پیدا شوه، دا چې یو انسان ووژل شي یو سخت کار دی، دا ټول حماقتونه ولې کیږي؟ خو زه کوښښ کوم چې هېر یې کړم، کوښښ کوم چې خپلې اوږې پورته کړم، خپل توپ راواخلم او په ناڅاپي توګه یې د چینایانو او روسانو د ډلې په لور واړوم، نه غواړم چې هغوی ووژنم یوازې غواړم چې هغوی زموږ له وژلو منعه شي، غواړم چې د هغوی وسلې غلې شي، خو غم دا دی د دوی وسله به هلته غلې شي، چې دوی غلي شي او دا د خفګان خبره ده، دوی باید خامخا ووژل شي، څو د دوی وسلې له لېونتوبه غلې شي.

راځه چې لږ وخاندو!

ما په حیرانتیا وویل:

څوک؟

منصور درغا د نجمة اللیل نوم واخیست او ما وویل:

زه د هغې پلار یم.

کله چې منصور زما وروستۍ خبره واورېده په زوره زوره یې وخندل:

ښه نو ته یې پلار یې؟

ما خپلې سترګې د تشې مانۍ په لور واړولې او ومې ویل:

ما په کاشغر کې له یو سپین ږیري واورېدل چې همدا کلمې یې ویلې، «زه د هغې پلار یم»، ما له خپل رئیسه هَم واورېدل چې دا خبره یې کول، «زه د هغې پلار یم»، خو ای منصور درغا! زموږ هېواد دې ته سخته اړتیا لري چې یو څوک همېشه ووايي، «زه د هغه پلاریم».

منصور زما اوږه وټپوله او ویې وویل:

جګرې ستا اعصاب ستړي کړي دي.

ما په غمژنه توګه ځواب ورکړ:

کېدای شي.

تاسې اورومجي ته رسېدلي یئ؟

محاصره کړې مو دی او جګړه پای ته نژدې ده.

منصور درغا وخندل او ویې ویل:

خو زه وایم چې زموږ عذاب هیڅ پای نه لري، تر څو چې موږ د امبور په منځ کې یو، چې د دې امبور یو اړخ چین او دوهم اړخ یې روس دی او دواړه په موږ کې خپلې تمې لري، زموږ د اسلام د منځه وړل غواړي، ځکه چې اسلام ختمول زموږ ختمول دي، ما د هغوی له فیلسوفانو همداسې اورېدلي او د هغو ښارونو په ځینو پټو خپرونو کې مې هم دې ته ورته افکار لوستي دي، چې موږ ونیول او هغوی ځنې وتښتېدل، دا توکي ماته له سوځول کېدو وړاندې لاسته راغلي وو، ما سره د دې ډول اسنادو یوه غټه ټولګه شته، خواجه نیاز ته به یې ورم، دا د نوي ډول صلیبي جنګ دی.

ناڅاپه منصور زما غوږ ته رانژدې شو او پټ یې راته وویل:

نجمة اللیل د شپې په تیاره کې وتښتېدله.

څنګه وتښتېدله؟

هغه قوماندان تر ټولو دمخه وتښتېد، چې نجمة اللیل

يې د خپل ځان لپاره غوره کړې وه.
منصور په خندا شو او ويې ويل:
نجمة الليل، د ژوند په اوږدو کې د خاورې په څېر، بلکې ختهو ته ورته ده، ته يې داسې نه پېژنې لکه زه يې چې پېژنم، راځه ګرانه ملګريه چې د لومړي ځل لپاره درته د هغې خبرې وکړم، د هغې له لسو زيات عاشقان وو، په هغوی کې اس روزونکي، شپانه، سرتېري او شتمن سپين ږيري شامل وو، چې په هغې به يې ملغلرې شيندلې.
ای مصطفی! ته ساده او ښېرا يې، مه خفه کېږه، زه پوره ستا په څېر نه يم، دې تورو ورځو داسې کړم چې يوازې له يو شي پرته په بل هېڅ هم باور نه کوم، په هغه انسان باور کوم چې وسله پورته کړي او تر مرګه وجنګيږي، دا د فساد او ضايع کېدو زمانه ده، ژوند په کې لعنت دی، نجمة الليل ارومجي ته ولاړه، ربښتيا وايم که چېرته موږ وکولای شول چې اورومجي ته داخل شو، نو ګورې به چې به په ژړا به درته راځي او مرسته به غواړي او بيا به ټولو ته د استبداد او ظلم له کبله د يوې شهيدې په څېر ښکاره شي، خلک به يې اوښکې ربښتونې وګڼي او ته به دې هم زړه نرم کړې.
ما په خپله تفنګچه ګوتې ووهلې او بيا مې په ګونېدلي اواز وويل:
خاين ورکيږي.
منصور په داسې حال کې چې اوږې يې خوځولې په خندا سره راغبرګه کړه:
داسې نه شي کولای، هغې چې څه وکړل ايا هغې ته مجبوره کړای شوې نه وه؟
موږ بايد له دې زهرجنو بړاسونو او بې کاره بوټو څخه خپله ځمکه پاکه کړو.
منصور په خندا شو:
بړاسونه الله پيدا کړي او بې کاره بوټي همېشه موجود وي، خو ما يوې جتې ښځې سره واده کړی، چې د غرونو اوسېدونکې ده، هغه د جنګ په اړه په ډېر څه نه پوهيږي او تا؟
زه به شپه دوه شپې په قومول کې پاتې شم او بيا به اورومجي ته ولاړ شم او تاسو سره له دوه اونيو وړاندې نه شم يو ځای کېدی.
منصور سره مې خدای پاماني وکړه او د قومول په کوڅو کې سرګردانه روان شوم.

نور بيا...

## ځوانان

چې مړه دي که خبر له دښمن نه دي ځوانان
پوی نه شوم دا په څه داسې بيده دي ځوانان

هم دين دی هم دنياده هم ميراث د پلرو
جهاد ته ولې داسې زړه نا زړه دي ځوانان

پرې خرڅ يې کړل وطن او دين ايمان او وجدان ټول
افسوس چې په ډالرو پسې مړه دي ځوانان

يو لور ته که ځوانان دي ددښمن دسترګو خار
بل لوري ته بيا ډېر ديرغل مله دي ځوانان

دخپل مظلوم ملت کوکې يې څنګه تر غوږ نه شوې
دغرب ظلم ته څه ډول ړانده دي ځوانان

"زړګيه "دځوان ټکی په دوی مه بدناموه
له اصله هيجړاګان تش په نامه دي ځوانان

# د تورې بوړې د اتل شهید قوماندان

## میا سمیع الدین لنډه پیژندنه



**لیکنه : استاد میافریدالدین**

محترم شهید میاسمیع الدین "حقیار" آبومحمددمحترم الحاج میامعزالدین " قمري " ځوي د(۱۳۵۵) هجری لمریز کال په اوږدو کې د ننګرهار ولایت د روداتو ولسوالی دبرو په قریه کې دمحترم میاقمرالدین رحمه الله په درنه او روحا نی کورنی کې زیږیدلی. د نسب سلسله یې تر سید ناعلی کرم الله وجهه پوری غزیږی.

په ګران هیواد دسرو یرغلګرو دیرغل پر مهال ئی دخپلی کورنی دمشرا نو سره ګاونډي هیواد پاکستان ته د هجرت لاره خپله کړه چه دهجرت په دیارکې ئی دزید بن حارثه (رض) اود سعیدبن مسیب په ښوڼځیوکې زده کړی تر سره کړي.

نومړي دښه قوی ذها نت ، حافظی او ښه استعداد خاوند وو له زده کړی پرته د مطالعی پر بنسټ دپوره دیني معلوماتو لرونکی وو.

د(۱۳۷۰)لمریز کال په اوږدو کې دشهیدملنګیار جبهی ته دجهاد لپاره ولاړ چه دعمر دکموالی له کبله دمسؤلینولخوا بیرته کورته راولیږل شو ، محترم میا صاحب د مسلحا نه جهاد سره بی کچه مینه درلوده په همدغه احساس چې کله آزر بایجان کې دجهاد غربپورته شو نوموړی هم د نورو ډیرو افغا نا نو سره په دغه سفر کې شریک شواو دجهاد په نیت په تنکی ځوا نی کې آزر بایجان ته ورسید چه بیرته روغ رمټ او په خیر راستون شو دکمیونستي ریژیم له راپرځیدو وروسته محترم میاصاحب هم دخپلی درنی کورنی سره ګران ټاټوبي ته راستون شو اوپه خپل پلر نی کلی بروکې ئي هستوګنه اختیارکړه.

په هیواد کې دطالبا نو اسلامي تحریک په رامنځ ته کیدو د ډیرو مایوسه افغا نا نو دهیلو غوټی په غوړیدا شوي او دهیواد هر اصیل بچي ددغه تحریک دبریاوو په هیله متي رابډ وهلی چه محترم میا صاحب سمیع الدین هم په خپل وار دیوه فداکار او مخلص مجاهد په توګه دطالبا نو داسلامي تحریک په لیکوکې جهادی خدمات تر سره کړل ، کنړ، چاریکار ، جبل السراج ، پل متکا وپنجشیر په مختلفو عملیاتوکې ئي فعاله برخه درلوده.

